| شمېره | عنوان | مخ |
|---|---|---|
| ۳۰ | د ټولې ځمکې غمونه په خپل سر مه اخله! | ۷۵ |
| ۳۱ | په وړو خبرو پسې مه ګرځه | ۵۹ |
| ۳۲ | د الله پر وېش خوښ اوسه | ۶۲ |
| ۳۳ | جنت او د هغه پراخي را په زړه کړه | ۶۴ |
| ۳۴ | په هر کار کې منځلارې اوسه! | ۶۶ |
| ۳۵ | پای | ۶۸ |

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

الحمد لله والصلوة والسلام علی رسول الله وعلی اله وصحبه .....

اما بعد!

دغه کتاب مې د بیت الله شریف ترخنگ په دوو ورځو کې ولیکه، په دې کې مې د دنیا او اخرت د نېکمرغیو د لاملونو په راټولولو کې له لسگونو کتابونو څخه گټه اخیستې، چې د نومونو په یادولو یې نه غواړم خپله لیکنه اوږده کړم؛ خو د هغو ټولو کتابونو څخه مې نچوړ را اخیستی په دې هیله، چې الله تعالی پرې ما او تاسې ته په دنیا او اخرت کې گټه ورسوي، په ربښتیا هم دا یوه داسې ټولگه ده، چې تا یو ارام، هوسا او په زړه پورې ډاډمن ژوند ته رابولي.

ښه به دا وي، چې بیا بیا یې وگورې، جملې یې تکرار کړې، له کلمو لاندې یې خط راکاږې، پر لارښوونو یې عمل وکړې او هیله ده، چې په کور کې یې خپلې کورنۍ ته او په جوماتونو کې یې د منبر پر سر ولولئ او خلکو ته د وعظ او لارښوونې په لړ کې ترې گټه واخلئ د دې کتاب مثال د کشمالې د گل په څېر دی، چې گرځول یې اسان او بوی یې په زړه پورې دی، تاسې کولای شئ، چې په خپل کتابتون کې یې له ځان سره وساتئ او د خوب پر مهال یې په خپله خوا کې کېږدئ.

کله یې چې لولئ له ځانه پوښتنه وکړئ، چې ایا ستاسې په ذهن کې یې بدلون راوستی او که نه ؟ ایا پخپل روح کې بدلون مومئ؟ کېدای شي د دې ځواب هو وي او زما موخه همدا ده، چې دا کتاب ستاسې پر روح مثبت اغېز وکړي، له الله تعالی نه غواړم، چې په دې کتاب زما موخه ترسره شي زه یواځې پر هغه ځان ورسپارم او هغه ته ورگرځم .

دوکتور عائض القرني

لومړی لامل

## فکر وکړه او شکر وباسه

پخپل ځان د الله تعالی له لوري پېرزو شوي نعمتونه راپه زړه کړه، چې له هرې خوا يې پر تا لورولي، الله تعالی فرمايي:

﴿وَ اِنۡ تَعُدُّوۡا نِعۡمَةَ اللّٰهِ لَا تُحۡصُوۡهَا﴾

«که تاسې د الله تعالی نعمتونه وشمېرئ؛ نو شمېرلی يې نشئ.»

په بدن کې يې روغتيا دربښلې، په هېواد کې دې امنيت دی (د ليکوال په هېواد کې شته مور يې هم په هيله يو) خواړه، جامې، هوا، اوبه ټول ستا په خدمت کې دي، نړۍ ټوله له تا سره ده؛ خو ته پرې نه پوهېږې، پوره ژوند له تا سره دی؛ خو تا پرې سوچ نه دی کړی .

﴿وَ اَسۡبَغَ عَلَيۡكُمۡ نِعَمَهٗ ظَاهِرَةً وَّ بَاطِنَةً﴾

«او خپل ښکاره او پټ نعمتونه يې پر تاسې تمام کړي دي؟»

سترګې لرې ليدل پرې کوې، غوږونه دې شته اورېدل پرې کوې، ژبه او شونډې دې شته ويل پرې کوې، لاسونه لرې، نيول پرې کوې.

﴿فَبِاَيِّ اٰلَآءِ رَبِّكُمَا تُكَذِّبٰنِ﴾

«تاسې به د خپل رب کوم کوم نعمتونه درواغ وګڼئ؟»

ايا دا وړه خبره ده، چې ته پخپلو پښو ګرځې او ډېر خلک له دې نعمت څخه بې برخې دي او پخپلو پښو د ګرځېدو ارمان کوي، ته پر خپلو پښو ودرېږې او ډېر خلک داسې شته چې پښې يې غوڅې دي.

ايا په ډکو سترګو په خواږه خوب ويده کېدل کم بولې، سره له دې، چې د ډېرو خلکو سترګې د درد او غم له امله نه پټېږي، الله مه کړه که غمونه او انديښنې ستا له سترګو خوب وتښتوي، ته بيا څه کولای شې؟ همداشان ته په مړه خېټه خوراک کوې او ډېر خلک نهارې ورځې تېروي او په تنده شپې سبا کوي، ځينې د ځان لپاره خواړه او د څښلو

اوبه نه لري او ځینې بیا د ډول ډول ناروغیو له امله ترې بند شوي دي، د خپلو غوږونو او سترګو په اړه دې لږ سوچ وکړه، الله له کوڼوالي او ړوندوالي ساتلی یې، خپل پوستکي ته دې وګوره له برګي (پیس) مرض او خوږونکي ناروغۍ څخه خوندي دی او بیا خپل عقل ته ځیر شه، چې الله تعالی په تا لورولی او له لېونتوب څخه یې ژغورلی یې.

ایا د خپلې یوې سترګې په بدل کې د احد د غره په اندازه سرو زرو قبلولو ته تیار یې؟

ایا خپل یو غوږ یا د هغه د اورېدو ځواک په ډېرو سپینو زرو ورکوې؟ ایا ښکلې ښکلې بنګلې د خپلې، ژبې په بدل کې له چا نه قبلوې، چې ته ګونګ پاتې شې او هغه ستا په ژبه خبرې وکړي؟ ایا د خپل یوه لاس په بدل کې د یاقوتو او قیمتي مرغلرو اخیستلو ته تیار یې؟

پام کوه! ته خو په ډېرو سترو، قیمتي نعمتونو او د الله تعالی په مهربانیو کې پټ یې؛ خو ستا ورته فکر نه دی آیا له دې هر څه سره بیا هم غمژن ژوند کوې؟.

ستا په کور کې ګرمه ډوډۍ پخېږي، یخې اوبه لرې، په ارام سره د خوب وخت درسره شته، روغ بدن لرې، بیا هم ته هغه نعمتونه یادوې، چې له لاسه دې ورکړي او هغه دې هېر دي چې په لاس کې یې لرې او شکر پرې نه وباسې، له مالي زیان څخه وېره لرې سره له دې چې د نېکمرغیو کلیانې ستا سره دي او د خیر خزانې درسره ډکې دي، د الله تعالی له لورې بې شمېره نعمتونه او پېرزوینې درسره دي سوچ وکړه او شکر پرې وباسه، ځکه الله تعالی دې همدې خبرې ته رابولي:

﴿وَفِيٓ أَنفُسِكُمۡۚ أَفَلَا تُبۡصِرُونَ﴾

«او په خپله ستاسې په خپل وجود کې. ایا تاسې په ځیر کتونکي نه یئ؟»

خپل ځان، اولادونو، کور، کار، روغتیا، دوستانو، ټولې نړۍ او خپل چاپېریال ته وګوره، ته به په دې پوه شې، چې الله تعالی پر تا څومره

نعمتونه پېرزو کړي دي، که دې پرې سوچ کړی وي؛ نو له هغو خلکو څخه مه جوړېږه، چې:

﴿يَعْرِفُونَ نِعْمَتَ اللهِ ثُمَّ يُنْكِرُونَهَا﴾

«دوی د الله تعالی نعمتونه پېژني، بيا ورڅخه منکرېږي.»



دويم لامل

## څه چې تېر شو، هغه هېر شو

تېر وختونه يادول، له هغې اغېزمن کېدل او په پېښو يې غمجن کېدل ناپوهي او لېونتوب دی، ځان په زوره وژل، اوسنی ژوند او خپل بريمن هوډ بربادول دي، د عاقلانو په اند د تېرې زمانې يادول او په هغې غم او خفگان کول ناوړه کار دی، هوښيار خلک له خپلې حافظې نه د تېرې زمانې کيسې وباسي که دا نه وي؛ نو د تېرې زمانې پېښې يادول سړی د بې کارۍ په غښتلي زنځير تړي، چې بيا ترې کله هم نشي وتلای، سړی په تيارو کې اخته کوي، چې بيا په رڼا پسې ړندېږي، له دې امله تېرې ورځې تېرې دي او د راتلونکيو شمېرل پکار دي، تېره زمانه اوس تېره ده او له منځه تللې، نه يې خپگان بېرته راستنولای شي او نه يې غم؛ نو له لاسه د وتليو شيانو په غم کې ځان مه هلاکوه او د تېرې زمانې په يادونو کې ژوند مه کوه.

ايا ته غواړې، چې تر ورخ تېرې اوبه بېرته راستنې کړې؟ ايا دغه کار امکان لري؟.

ايا بېرته لمر له مغرب څخه مشرق ته راستنول غواړې؟ او ايا دا کېدونکی کار دی؟.

ايا له سترگو څخه بهېدلې اوښکې بېرته سترگو ته ننويستل غواړې او ايا دا کار به ترسره شي؟.

ته خو په دې کار خپل ژوند له تباهۍ سره مخ کوې.

د ماضي په دفتر کې څېړنه (مطالعه) د موجوده ژوند بربادول، د خپلو هڅو له منځه وړل او د وخت غنيمت له لاسه ورکول دي، الله تعالی مخکني امتونه او د هغوی کړنې يادوي، فرمايي:

﴿تِلْكَ أُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ﴾

«دغه يو ولس و او تېر شوی دی.»

خبره يې ختمه شوې او کار يې ختم شوی دی، چې په دې اړه د زمانو تشريح کولو او د تاريخ يادونه راتازه کولو ته اړتيا نشته.
هغه څوک چې د تېرې زمانې په حالاتو د خپل موجوده ژوند نه ځان مشغولوي، دا ميده شوي وړه د بيا وړه کولو لپاره ژرندې ته وړي، د دې بېلګه داسې ده لکه څوک چې شيندل شوې ګياه بيا شيندي، پخوانيو هوښيارانو به هغه چا ته چې په تېرو حالاتو به يې ژړل داسې ويل: مړي له قبرونو نه مه راوباسئ! او ويل شوي دي، چې نورو حيواناتو خره ته وويل ولې شخوند نه وهې؟ هغه ورته وويل دروغ ويل مې له لاسه نه کېږي.
په موږ کې ستونزه دا ده، چې د اوسنۍ زمانې غم راسره نشته، په اړه يې له هوډ نيولو او پرېکړې کولو څخه بې وسه يو او په تېرو حالاتو وخت تېروو، اوسنۍ ښکلې او په زړه پورې بنګلې مو له ياده ويستلې او د زړو ورانو شويو اباديو په غم کې يو، سره له دې که انسانان او پېريان ټول سره راټول شي تېر حالات بېرته نشي راګرځولای، ځکه دا ناشونی کار دی او هيڅ امکان نه لري.
هوا، اوبه او قافله ټول پر مخ ځي او انسان د تلو پر مهال خپلې مخې ته ګوري شاته نه ګوري؛ نو ته هم د ژوند له قانون څخه سرغړونه مه کوه، چې روان مخې ته يې او ګورې شاته او يا دې مخه پرېښې وي او پر شا روان يې!!!

درېیم لامل

# نننۍ ورځ غنیمت وګڼه

کله چې دربانديې سهار شو د ماښام هیله مه کوه، نن ورځ ستا د ژوند د چارو سر ته رسولو لپاره پوره وبوله، پرونۍ ورځ چې تېره شوې ده که ښه تېره شوې او که بده هسې هم تېره ده او سبانۍ ورځ لا تر اوسه راغلې نه ده، نننۍ لمر پر تا راختلی دی او ورځ یې پر تا راغلې ده، ستا لپاره همدا ورځ ده او بس، ستا ټول عمر په اصل کې یوه ورځ ده؛ نو ټول ژوند د دې ورځې لپاره وګرځوه.

ته داسې فکر وکړه چې ګواکې ته په همدې ورځ زېږېدلی یې، په همدې ورځ کې ژوند کوې او په همدې ورځ به مرې، په تېرو غمونو او راتلونکي ډار خپل ژوند مه تباه کوه، یواځې د همدغې ورځې غم وکړه، چې ته پکې ژوند کوې او خپل ټول پام دې ته راوګرځوه، په همدې ورځ په پوره عاجزۍ د الله تعالی بندګي وکړه، لمونځ وکړه، په سوچ، فکر او تدبر سره تلاوت وکړه، په توجه سره د الله تعالی ذکر وکړه او په ښه طریقه د همدې ورځې کارونه سر ته ورسوه، خپل شخصي ژوند ته پاملرنه وکړه، په هغه څه راضي شه چې الله تعالی درکړي دي او نورو ته ګټه ورسوه.

د خپلې همدغې ورځې لپاره مهال ویش جوړ کړه چې ته پکې یې، له دقیقو څخه یې کلونه جوړ کړه او له ثانیو یې میاشتې، په دې کې د خیر کښت وکړه، نیکۍ پکې جمع کړه، له ګناهونو ښښنه وغواړه (استغفار ووایه) خپل رب پکې راياد کړه او د اوږده ژوند لپاره تیاری وکړه، په دې ورځ کې خوشحاله او له خوښۍ ډک ژوند وکړه، په پوره ارام او امن سره یې تېره کړه، په نننۍ ورځ پر خپل رزق، بچیانو، کور، کاروبار ، دنده او خپله سویه خوښ اوسه.

﴿فَخُذْ مَآ اٰتَيْتُكَ وَ كُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ﴾

«له هغو نعمتونو ګټه واخله، چې ما درکړي دي او د شکر ویستونکیو له

ډلې څخه شه.»
په همدې ورځ کې په پوره خوښۍ سره ژوند وکړه هیڅ غم مه کوه، په ځان په زوره خپل ژوند مه تنگوه، غصه کېږه مه او له چا سره کینه او حسد مه کوه.
د خپل زړه پر تخته یو عبارت ولیکه د خپل دفتر په مېز یې هم کېږده او پخپله ژبه یې هم وایه او هغه دا چې ((ستا لپاره همدا نننۍ ورځ ده))
هر کله چې درته نن ورځ په زړه پورې، گرمه او خوږه ډوډۍ رسېږي؛ نو د پرونۍ بې کاره او سړې سپورې ډوډۍ څه غم کوې او یا د سبا ورځې په اړه ولې اندېښمن یې؟ سره له دې چې د سبا ورځې علم له تا سره نشته او دا چې نن ورځ ښې یخې، خوږې او په زړه پورې اوبه په واک کې لرې؛ نو په پرونیو تروو اوبو او یا سبانیو ترخو اوبو ولې خفه یې؟.
که ته په خپل نفس لږه خواري وکړې او اراده دې غښتلې وي؛ نو د یوې نظریې منلو ته به یې تیار کړې او هغه دا چې ((زه یواځې نن ژوندی یم)) نو بیا به ستا نفس د دغه ورځې ساعتونه غنیمت وگڼي او د دې ورځې هره شېبه به د خپل ځان په جوړونه ولگوي، خپلو نعمتونو ته به وده ورکړي، د ځان د پاکوالي غم به وکړي، د خپل عمل او کار د ښکلا هڅه به وکړي، ته به ووایې: چې زه یواځې د نن ورځې لپاره خپله خوله له بدو الفاظو پاکوم؛ نو کنځلې، غیبت، بې حیا او سپکې خبرې نه کوم، د نن ورځ لپاره خپل کور او کتابتون ترتیبوم؛ نو نه کار گډ وډ پرېږدم او نه پر زړه غم، زه یواځې په دې نن ورځ ژوندی یم او د نننۍ ورځې لپاره به هڅه کوم، د ځان د پاکوالي خیال به ساتم، خپل ظاهر او باطن به جوړوم خپل تگ راتگ او خبرې او حرکتونه به جوړوم.
دا چې زما ژوند یواځې نن ورځ دی؛ نو زه به نن د خپل رب په عبادت او بندگۍ کې هڅه کوم، په ښایسته توگه به خپل لمونځ سر ته رسوم، په نفلونو د خپل ځان لپاره د اخرت توښه جوړوم، د خپل رب له کتاب (قرانکریم) سره تړاو پیدا کوم، خپل کتابونه مطالعه کوم، گټه ترې پورته کوم او د ځان لپاره گټورې خبرې لیکم.

دا چې زما ژوند يواځې نن ورځ ده؛ نو زه بايد په خپل زړه کې د خير او فضيلت نيالګي نال کړم او د شر نيالګي ترې له بېخه وباسم، خپل زړه بايد د الله تعالی پېژندګلوۍ، مينې او له هغه سره اړيکو ته ځانګړی کړم او له حسد، دوکې بدګمانۍ او نورو ناروغيو څخه يې وژغورم.

دا چې زما ژوند يواځې نن ورځ ده؛ نو زه بايد په دې ورځ کې نورو ته ګټه ورسوم، د ناروغ پوښتنه پکې وکړم، له جنازې سره لاړ شم، ورې ته خواره ورکړم، له غمژن څخه د غم په لرې کولو کې مرسته وکړم، له مظلوم سره ودرېږم، د کمزوري مرسته وکړم، د عالم قدر، پر کشرانو شفقت او د مشر درناوی وکړم او هغه چاته لارښوونه وکړم، چې لار ترې ورکه ده.

دا چې زما ژوند يواځې نن ورځ ده؛ نو په همدې نن ورځ کې به کار کوم او ماضي ته به مې خطاب داوي چې:

ای ماضي! ته له منځه تللې يې، لمر دې پرېوتی دی؛ نو زه پر تا نه ژاړم او نه ستا د يادونې لپاره د سترګې د رپ په اندازه ودرېږم څکه تا موږ پرېښې يو او له موږ څخه دې کوچ کړی او بېرته هېڅکله موږ ته نه راګرځې.

او راتلونکي ته به مې وينا دا وي چې:

ای راتلونکيه وخته! ته خو لا نه يې راغلې، ته لا تر اوسه په عالم الغيب کې يې، ستا په اړه يواځې له الله تعالی سره علم دی موږ ستا په اړه هيڅ علم نه لرو؛ نو زه نه غواړم، چې ستا په تشو خيالاتو، وهمونو او ګډو وډو خوبونو ځان بوخت کړم، زه يو نشت شی په تادۍ سره نشم غوښتلای، څکه ته عدم يې، ته هيڅ شی نه يې، ولې چې له سره پيدا شوی نه يې او نه د يادولو وړ يې.

ستا په واک کې نن ورځ ده، ای انسانه! که نېکمرغه ژوند غواړې؛ نو دا خبره د خپل ژوند په قاموس کې ځای کړه او نېکمرغه ژوند وکړه!

څلورم لامل

## راتلونکی وخت راتلو ته پرېږده

﴿أَتَىٰ أَمْرُ اللَّهِ فَلَا تَسْتَعْجِلُوهُ﴾

د الله تعالی فیصله راغله، اوس د هغې لپاره تلوار مه کوئ.»

ایا ته غواړې چې له تیاري څخه مخکې خپل ټول سامان په شا کړې او له پخېدو مخکې مېوه وشکوې؟

یاد ساته!

سبا ورځ لا نه ده راغلې، دا ورځ لا تر اوسه څه حقیقت نه لري، شتون یې نشته، خوند یې نه دی څکل شوی، رنګ یې نه دی لیدل شوی؛ نو ولې پرې ځان بوخت کړو او ولې یې له غمونو او مصیبتونو څخه ځان ووېروو؟ سره له دې چې موږ په دې نه پوهېږو چې موږ له سبا ورځې نه مخکې له منځه ځو او که ورته رسېږو؛ نو له څه سره مخ کېږو؟ خوښي را روانه ده او که ناخوښي او تر ټولو ډېره د پام وړ خبره دا ده چې دغه ورځ په عالم الغیب کې ده، لا تر اوسه ځمکې ته نه ده رارسېدلې، موږ د راتلونکي په اړه د خبر ورکولو او په هغې کې خبرو کولو ته اړتیا نه لرو، موږ نشو کولای چې له یوه نالیدلي شي څخه تعبیر وکړو، کېدای شي موږ له هغه نالیدلي شي سره هیڅ مخ نشو، یا هغه شی زموږ له وررسېدو وړاندې له منځه لاړ شي.

په راتلونکي وخت کې سوچونه کول، له غمونو یې وېرېدل او له موجوده ژوند نه پرې ځان بوختول په شریعت کې هم ناروا دي، ځکه دې ته په شرع کې طول الامل ویل شوي دي او دا عقلاً هم ناوړه کار دی، ځکه دا د پاتې والي لامل دی سړی له پرمختګ څخه منع کوي، په نړۍ کې ډېر داسې خلک شته چې د راتلونکي وخت د لوږې، ناروغۍ او غمونو په اړه سوچونه کوي، دا ټول د شیطان له مدرسو څخه دي

﴿اَلشَّیۡطٰنُ یَعِدُکُمُ الۡفَقۡرَ وَ یَاۡمُرُکُمۡ بِالۡفَحۡشَآءِ ۚ وَ اللّٰهُ یَعِدُکُمۡ مَّغۡفِرَۃً مِّنۡهُ وَ فَضۡلًا﴾

«شیطان تاسې له غریبۍ او بې وسۍ وېروي او له دې لارې درته په بې حیا او ناروا کار امر کوي او الله تعالی تاسې سره د خپلې بښنې او مهربانۍ ژمنې کوي.»

داسې ډېر خلک شته، چې په دې ژاړي چې کېدای شي سبا به ورته څه درد ورسېږي، یا کال پس به ناروغه کېږي او کېدای شي سل کاله پس به دنیا ورانه شي، بې شکه د هغه چا لپاره چې ژوند یې د بل چا په لاس کې دی نه ده پکار چې ځان په هغه څه کې بوخت کړي چې تر اوسه یې شتون نشته او هغه څوک چې د خپل مرګ نېټه ورته نه ده معلومه، ولې پر یوه ورک او بې حقیقته شي ځان بوخت کړي؟

سبانۍ ورځ راتلو ته پرېږده، په اړه یې پوښتنې مه کوه او مه یې په اړه سوچونه کوه، ځکه ته باید په نننۍ ورځ ځان بوخت وساتې.

دا نا اشنا خلک دي د سبا ورځې سوچونو چې د ده په واک کې نه ده د نننۍ ورځې له اهتمام نه ویستلي سره له دې چې نننۍ ورځ د ده په واک کې ده، دا څه ناشنا اوړد امید لري؟!

پنځم لامل

## د خلکو له ویناوو به څنګه ځان خلاصوې؟

ناپوهه خلک الله تعالی ته کنځل کوي نو ما او تا به ترې څنګه خوندي شو؟ له دې امله ته به په ژوند کې له ډېرو ناوړه خبرو، جګړو او شخړو سره مخ کېږې او دا ټول د ناوړه خلکو له لاسه، هغوی به ستا سپکاوی کوي او تل به ترې داسې ویناوې اورې، چې ته به حیران یې چې له دوی نه کوم خوا وتښتم، ایا په ځمکه ننوځم او که اسمان ته وخېژم او بیا په داسې حال کې چې ته د دوی ترمنځ په ښه نوم یادېږې یا څه لوړ مقام لرونکی یې؛ نو بیا خو له دوی نه ډېر څه ته تیار شه، داسې څه به ترې واورې چې د اوښکو پر ځای به وینې توی کړې.

حسدو الفتى اذ لم ينالو سعيه

فالناس اعداء له و خصوم

«خلک له یوه ځوان سره له دې امله کینه کوي، چې د هغه وړتیا ته ځان رسولای نشي.»

هغه څوک چې پر ځمکه ناست وي نه رالوېږي او مړه سپي ته څوک «کورې» نه وایي، دوی تا ته ځکه غصه دي، چې په وړتیا، علم، ادب او مال دولت کې تا ته نشي رسېدای، همدا لامل دی چې ته د دوی په آند ګناهګار یې، نه دې د توبې قبلېدو وړ بولي او نه دې سم یادول مناسب ګڼي، تر دې چې د الله تعالی نعمتونه دې ټول له لاسه نه وي ورکړي او د ستاینې له ټولو صفتونو نه خالي شوی نه یې، یو غبي او ناپوهه درڅخه جوړ شوی نه وي، له دې امله د خلکو د ویناوو په مقابل کې د تېرې په څېر کلک شه پروا پرې مه کوه او مه پرې غمجن کېږه، بلکې د دوی ویناوې د ځان لپاره فضیلت وګڼه، له دوی څخه مخ واړوه احسان ورسره وکړه، که له تا سره یې کینه پرېښوده؛ نو د ځان ګټه یې ده او کنه؛ نو پر خپل حال یې پرېږده چې سوځي، د دوی کینه او نیوکې تا ته

زيان نشي رسولای، بلکې دا هر څه يې ستا د لوړ شان ترجماني کوي.
ته د دوی خولې نشې تړلای او نه يې په ښو خبرو راوستلای شې؛ هو!
ته کولای شې چې د دوی نيوکې پخپل زړه کې وساتې او عکس العمل
پرې ونه ښيې، د دوی پر ويناوو پروا ونه کړې، ستا لپاره تر دې پرته بله
ښه لار نشته او الله تعالی هم دې ته اشاره کړې، لکه چې فرمايي:

﴿قُلْ مُوتُوا بِغَيْظِكُمْ﴾

«ورته ووايه پخپله غصه مړه شئ.»

که ته غواړې، چې د ټولو خلکو په زړونو کې ځای ولرې؛ نو دا خو ته د
يوه محال (ناشون) کار په هيله يې چې هيڅ کېدای نشي، د دې داسې
مثال دی لکه ته چې غواړې اسمان ته وخېژې، ايا دا کار کېدای شي؟.

شپږم لامل

## له چا نه د شکر هیله مه لره

مـن يفعـل الخير لايعـدم جوازيه
لايذهب العرف بـين الله والناس

«څوک چې د نېکۍ کار وکړي، له بدلې څخه به يې بې برخې نشي، د خلکو او د الله تعالی ترمنځ نېکي له منځه نه ځي.»

الله تعالی خلک د خپل ذکر او عبادت لپاره پيدا کړي دي او رزق د دې لپاره ورکوي چې شکر پرې وباسي؛ خو بيا هم ډېر خلک د بل چا بندگي کوي او له الله تعالی پرته د بل چا شکر ادا کوي، ځکه په نفسونو د ناشکرۍ او انکار خوی غالب دی؛ نو که دا خلک ستا نېکۍ له ياده وباسي احسان دې هېر کړي او نه يې يادوي؛ نو په دې مه خفه کېږه، دا خبره د خلکو په فطرت کې ده چې احسان هېروي، بلکې ډېر ځله داسې هم کېږي چې کله ماړه شي او له تا بې پروا شي بيا له تا سره دښمني هم کوي او دا يواځې له همدې امله چې تا به ورسره نېکي کړې وي!!!

﴿وَمَا نَقَمُوٓا۟ إِلَّآ أَنْ أَغْنَىٰهُمُ ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥ مِن فَضْلِهِۦ﴾

«د دوی دا ټوله غوسه په دې خبره ده چې الله تعالی او د هغه پېغمبر په خپلې لورينې سره دوی شتمن کړي دي!»

د نړۍ تاريخ مطالعه کړه او د بصيرت په سترگو دې اوسنۍ نړۍ ته وگوره، ته به ووينې چې يو پلار به خپل زوی وپالي، ښه روزنه به يې وکړي، خواړه، جامه، زده کړه، دنده، ښځه، واده او د ژوند هر ضرورت به يې ورپوره کړي او دا هر څه به ورته په پوره ستونزو گاللو، شوگيرونو او مشکلاتو سره ترسره کړي؛ خو بيا به همدغه زوی د خپل پلار لپاره د داړونکي سپي په څېر وگرځي، سپک به يې بولي، تل به ورته له غصې

ډک وي، بې ادبي به يې کوي او پر دې سربېره ستونزې او کړاوونه به هم ورته پيدا کوي.

ياد ساتئ! هغه څوک خو دې ښځي نه ستومانه کېږي چې د نېکيو پانې يې د رذيلو خلکو په زړونو کې سوې وي او نېکۍ يې نه يادوي، دوی دې د خپل ځان لپاره هماغه ثواب پوره وګڼي، چې د دې نېکۍ په بدل کې يې الله تعالی ژمنه کړې، بې شکه د الله تعالی د اجر خزانې ډکې دي او هغه مهربان ذات دی.

ياد ساته!

چې د رذيلو خلکو ناوړه چلند او د هغوی په زړونو کې د نېکيو هېرېدل ستا لپاره د نېکيو د پرېښودلو لامل نشي، هر نېک عمل چې کوې د الله تعالی لپاره يې کوه او له چا نه يې د شکر هيله مه کوه، که داسې وکړې بيا به د چا ناشکري ستا لپاره د درد خبره نه وي، د الله تعالی ستاينه کوه چې تا ته يې د نېکۍ توفيق درکړی که څه هم څوک درسره ناوړه چلند کوي ته له هغه نه غوره يې، ځکه:

الْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ الْيَدِ السُّفْلَى.

«بره لاس (چې ورکړه کوي) له لاندې لاس څخه (چې سوال کوي) غوره دی.»

﴿إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللَّهِ لَا نُرِيدُ مِنكُمْ جَزَاءً وَلَا شُكُورًا﴾

«(خلکو ته ووايه!) چې زه تاسې ته د الله تعالی د رضا لپاره له خپلې شتمنۍ څخه خواړه درکوم د دې په بدل کې له تاسې نه بدله او شکر نه غواړم.»

داسې ډېر خلک تېر شوي دي چې د اړتيا پر مهال يې خپل لاسونه الله تعالی ته پورته کړي دي؛ خو کله چې يې اړتيا پوره شي؛ نو بيا يې حالت بل شان وي، الله تعالی يې حالت داسې څرګندوي، فرمايي:

﴿مَّرَّ كَأَن لَّمْ يَدْعُنَا إِلَىٰ ضُرٍّ مَّسَّهُ﴾

«دوی د اړتيا له پوره کېدو وروسته داسې وي، لکه له سره چې يې زه د

هغه ستونزې د حل لپاره رابللی نه یم چې دی پرې اخته و!»
ته په دې مه غمجن کېږه، چې یوه کم عقل ته د ښو خبرو د لیکلو لپاره قلم ورکړې او هغه پرې ستا غندنه ولیکي، یا امسا د دې لپاره ورکړې چې د سترېا پر مهال یې تکیه کړې خو هغه پرې په وهلو سره ستا سر زخمي کړي، د دې خلکو حال له رب العلمین سره په دغه ډول دی چې تاسې ته یې په خپل کلام قران کریم کې په ډاګه کړی؛ نو که زما او ستا په حق کې ترې کمی زیاتې وشي ته مه خفه کېږه.

اعلمــه الرمایــة کل یــوم
فلمــا اشــتد ســاعده رماني

هغه څوک چې ما ورته د نښې ویشتلو روزنه ورکړه، کله چې یې مټ ښه پوخ شو؛ نو زه یې وویشتم.

اووم لامل

## له بل سره نېکي

د نېکیو ګټه تر ټولو لومړی خپله کوونکي ته رسېږي، د ونې لومړنۍ مېوه د ونې کرونکی راټولوي، نېکي کوونکی لومړی په خپل نفس کې په زړه پورې صفتونه او ښکلي اخلاق مومي او په زړه کې یې خوښي راپیدا کېږي، ارامي مومي او د زړه غم یې له منځه ځي.
کله چې یو مصیبت درپېښ شي له بل سره نېکي وکړه، ستا مصیبت به له منځه لاړ شي، یو غمجن سره د غم پر مهال مرسته وکړه، له غمونو به خوندي شې، د یوه دردمند د درد لپاره مرهم شه، یو بې وزله او محروم ته د هغه د اړتیا سره سم یو څه ورکړه، د مظلوم مرسته وکړه، وږي ته خواړه ورکړه، د ناروغ پوښتنه وکړه، خپلې مخې ته به ښکاره نېکمرغي وګورې.
د نېکۍ کارونه د مشکو مثال لري، چې له خپل خاوند پرته پلورونکي او پېرودونکي ته هم ګټه رسوي، د نېکیو بازارونه له برکتونو ډک دي چې زړونه له احسان، نېکۍ او ښو خویونو ځخه ډکوي.
د خندا په ډکه خوله له بې وزلو سره مخ کېدل صدقه جاریه ده، نبي علیه السلام فرمایي:
أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلْقٍ .
«له خپل مسلمان ورور سره ستا په پراخه تندي او خوښۍ سره مخ کېدل، صدقه جاریه ده.»
او په تریو تندي له یو چا سره مخ کېدل له هغه سره د جنګ اعلان دی چې په نښته یې رب العلمین خبر دی او ډېره نږدې ده چې دغه نښته رامنځته شي.
یوه داړونکي سپي ته یو ګوټ اوبه ورکول د هغه جنت لامل دی چې پلنوالی یې د اسمانونو او ځمکې په اندازه دی، ځکه د بدلې ورکولو

والا ذات الله رب العلمین دی چې ډېر ښېونکی دی، جمیل دی، جمال خوښوي، غني او ستایلی شوی دی.
ای له بدمرغۍ څخه وېرېدونکیو!
د نېکیو باغ ته راشئ او د نورو د حقونو په ادا کولو ځان بوخت کړئ، دوی ته له خپلې سخا نه ورکړه وکړئ، مېلمستیا یې وکړئ، مرسته ورسره وکړئ، خدمت یې وکړئ، په دې سره به هرو مرو تاسې ته نېکمرغي تر لاسه کېږي

﴿وَمَا لِأَحَدٍ عِندَهُۥ مِن نِّعۡمَةٖ تُجۡزَىٰٓ ۝١٩ إِلَّا ٱبۡتِغَآءَ وَجۡهِ رَبِّهِ ٱلۡأَعۡلَىٰ ۝٢٠ وَلَسَوۡفَ يَرۡضَىٰ ۝٢١﴾

«پر هغه باندې د هېڅا هېڅ احسان نشته، هغه ته د هغه د بدل په ورکړه کې، هغه خو یواځې د خپل لوړ رب د خوښۍ لټونې لپاره دا کار کوي، ارومرو به هغه ترېنه خوشحاله شي.»

اتم لامل

## ځان بوخت کړه او له وزګارتیا ډډه وکړه!

وزګار خلک په انساني ټولنه کې له خبرو اترو پرته نور څه نه کوي، ځکه فکرونه يې د همدې لپاره خالي او وېشل شوي وي.

﴿رَضُوا بِأَنْ يَكُونُوا مَعَ الْخَوَالِفِ﴾

«هغوی په کور ناستو کسانو کې شاملېدل غوره کړل.»

د انسان لپاره تر ټولو زيات خطرناک حالت وزګارتيا ده، د دې بېلګه داسې ده، لکه موټر چې له موټروان پرته روان شي او کله ښي او کله کيڼ لور ته تاوېږي.

په کومه ورځ چې ته وزګار يې؛ نو غمونو، لانجو او کړاوونو ته به تيارېږې، ځکه وزګارتيا ستا ذهن ته د تېرې زمانې ټول مسايل راستنوي او د موجوده او راتلونکي وخت له مسايلو سره يې ګډ وډ کوي او له سختو ستونزو سره مو مخ کوي.

زما لخوا نه تاسې د يو دردمن ورور په توګه دا وړانديز دی او د ځان په اړه هم له الله تعالی نه توفيق غواړم، چې د دې پر ځای چې بې ګټې وخت تېر کړو په خپل ژوند کې بايد ګټور کارونه سر ته ورسوو، ځکه د سستۍ او بې کارۍ کنده ډېره خطرناکه ده او د ځان وژنې لپاره يوه غير مستقيمه لاره ده.

وزګارتيا په اصل کې د چينايانو د هغه پړاويز تعذيب مثال لري چې هغوی يې خپلو مجرمو بنديانو ته ورکوي، طريقه يې دا ده چې د اوبو د يوې سترې ذخيرې نه په يوه پيپ کې په يوه دقيقه کې يو څاڅکی راپرېږدي، په داسې حال کې چې بنديان يې پای ته انتظار کوي، دوی ته ويل شوي وي چې د دې ذخيرې تر خالي کېدو به تاسې په دې زندان کې بنديان ياست؛ نو د دغې ذخيرې تر خالي کېدو پورې ډېر بنديان په

لیونتوب اخته شوي وي.
راحت یو ډول غفلت دی او وزګارتیا مو په ژوند کې د غل مثال لري او عقل مو د دغو وهمي جګړو او یرغلونو ښکار کېږي؛ نو یاد ساته کله چې له داسې حالت سره مخ شې هڅه وکړه چې خپل ځان پر لمونځ، تلاوت، تسبیح، ذکر، مطالعه، لیکلو، د خپل کتابتون پر ترتیبولو، د کورنیو چارو په سمون او ان نورو مسلمانانو ته د ګټې په رسولو بوخت کړې، چې د وزګارتیا له رنځه خلاص شې.
وزګارتیا د کار په چاړه حلال کړه،
ګرانه وروره!
دا یواځې زما خبره نه ده تا ته به د نړۍ ۵۰ سلنه ډاکټران دا ډاډ درکړي، چې هرکله د وزګارتیا له امله له کومې رواني ستونزې سره مخ شې؛ نو ځان په کار بوخت کړه، ستونزه به دې له منځه لاړه شي.
ته نانوایانو (ډوډۍ پخوونکیو)، معمارانو، دهقانانو او نورو ټولو کاریګرو ته وګوره! چې د نېکمرغۍ او راحت په باغونو کې د بلبلانو په څېر چغېږي او ته په خپل کټ او بستره کې سترګې سولوې او اوښکې تویوې، دا ځکه چې ته د وزګارتیا په رنځ رنځور یې.

نهم لامل

## د نورو په رنګ کې ځان مه رنګوه!

د بل چا جامه مه په تن کوه، د نورو په صف کې مه ننوزه او پردۍ پېښې مه کوه بې شکه دا یو دردوونکی عذاب دی او ډېر خلک داسې دي چې خپل ځانونه، اوازونه، خوځښتونه، ویناوې، الهي ورکړې او خپلې ټولې وړتیاوې یې هېرې کړې دي او په دې ټولو کې یې د نورو خلکو په پله پل ایښی، چې دا ټول په پوره سختۍ او تکلف سره سرته رسوي، دا ټول تکلفات د انسان شان له خاورو سره خاورې کوي.

له ادم علیه السلام نه واخله تر وروستي مخلوقه پورې، دوه کسان په یو شکل او خوی نشته او نه کېدای شي؛ نو په الهي ورکړو او اخلاقو کې څنګه یو شان کېدای شي؟

ته د الله تعالی په مخلوقاتو کې یو ځانګړی مخلوق یې چې د نړۍ په تاریخ کې یې مثال نشته او نه به ستا په څېر بل څوک راشي.

ته په ټوله معنی له نور مخلوق څخه توپیر لرې، ته د زید او زید ستا په څېر نشي کېدای او همدا شان ته د عَمر او عَمر ستا په څېر نشي کېدای؛ نو ځان د تقلید په ګرداب کې مه اچوه.

هڅه وکړه، چې پر خپله بڼه او خوی باندې اووسېږې!

﴿قَدْ عَلِمَ كُلُّ أُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ﴾

«او هره قبیله وپوهېده چې له کومه ځایه خپلې اوبه واخلي.»

﴿وَلِكُلٍّ وِجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ﴾

«د هر چا لپاره یو لوری دی چې هغه ته مخ اړوي؛ نو تاسې د ښېګڼو په لوري په ځغاسته شئ.»

څنګه چې پیدا شوی یې همداسې ژوند وکړه، خپل اواز، بڼه او حرکتونه مه بدلوه، په مزل کې دې توپیر مه راوله، خپل ځان د وحې په تهذیب

سره مهذب کړه؛ خو خپل وجود مه لغوه کوه او خپلواکي دې مه وژنه.
ته ځانګړی رنګ لرې، ځانګړی خوند لرې، زه غواړم چې ته پخپل رنګ او خوند کې واوسېږې، ځکه ته همداسې پیدا شوی یې او موږ دې همداسې پېژنو؛ نو د نورو په رنګ کې ځان مه رنګوه. چې څوک وینې د هغه خوی خاصیت او کړه وړه خپلوې.
خلک په طبیعتونو کې د ونو له نړۍ سره مشابه دي، خوږ، تریخ، تریو، اوږد او لنډ ټول پکې وي، ته هم په دې ډول شه چې څنګه یې هماغسې پاتې شه، که ته د کیلې د ونې په څېر یې؛ نو له ځانه د ناک ونه مه جوړوه، ځکه ستا جوړښت او بیه له هغه نه ډېره ده، ځکه ته کېله یې، بې شکه زموږ ټول خویونه، رنګ او حرکتونه د الله تعالی د قدرت له نښو نه یوه نښه ده؛ نو ته ترې انکار مه کوه.

لسم لامل

# د الله جل جلاله پرېکړه او تقدير

په ځمکه او ستا په نفس کې چې هر څه پېښېږي هغه په کتاب (لوح محفوظ) کې لیکل شوي دي، قلمونه د تقدیر پر لیکلو وچ شوي د تقدیر کتابونه پورته شوي او کار فیصله شوی دی، تقدیرونه لیکل شوي دي او موږ ته هماغه څه رارسېږي، چې الله تعالی زموږ لپاره لیکلي دي.

مَا أَصَابَكَ لَمْ يَكُنْ لِيُخْطِئَكَ، وَمَا أَخْطَأَكَ لَمْ يَكُنْ لِيُصِيبَكَ

«هغه څه چې تا ته پېښېدونکي وي؛ نو ته ترې نشې بچ کېدای او هغه څه چې ته ترې (په تقدیر کې) خوندي يې دررسېدای نشي.»

دا عقیده ستا نفس غښتلی او ضمیر دې پیاوړی کوي، په دې سره تا ته له ازموینو او ستونزو څخه ډالۍ جوړېږي.

مَنْ يُرِدِ اللَّهُ بِهِ خَيْراً يُصِبْ مِنْهُ

«الله تعالی چې چا ته د خیر رسولو اراده وکړي له ستونزو سره يې مخ کوي.» نو تا ته چې څه ناروغي، مالي زیان، د زوی مړینه، د کور سوځېدل او داسې نور غمونه رسېږي، دا به ستا لپاره الله تعالی په تقدیر کې لیکلي وي او ته فکر وکړه چې دا هرو مرو ما ته رارسېدل، په دې سره تا ته اجر رسېږي او ګناه دې بښل کېږي.

هغه چا ته زېری دی چې غمونه پرې راځي او صبر پرې کوي، له الله تعالی نه رضا کېږي، بې شکه الله تعالی ورکوونکی دی، هغه اخیستونکی او پراخي راوستونکی دی، له الله تعالی څخه د هغه د کارونو په اړه پوښتنه نشي کېدای او له خلکو څخه د هر کار په اړه پوښتنه کېږي.

ستا د زړه غمونه او وسوسې تر هغې پای ته نشي رسېدای او نه دې د زړه بلبلانو ته ارام رسېږي، چې د الله تعالی پر تقدیر او پرېکړه دې ایمان نه وي غښتلی کړی؛ نو خپل ایمان پیاوړی کړه او خپل ځان په غمونو مه تباه کوه، په بې ځایه سوچونو ځان مه بوختوه، ته دا توان نه

لرې چې راپرېوتونکې دېوال راټينګ کړې، يا تر ورخه تېرې اوبه بېرته راستنې کړې او يا هم تېره شوې هوا بېرته راوګرځوې، دا سمه عقيده نه ده چې ته په تېرو پېښو وخت تېروې، هرو مرو به هغه څه پېښېږي چې ستا لپاره په تقدير کې ليکل شوي دي

﴿فَمَنْ شَآءَ فَلْيُؤْمِنْ وَّ مَنْ شَآءَ فَلْيَكْفُرْ﴾

«اوس که د چا زړه غواړي ودې مني او که د چا زړه غواړي، منکر دې شي.»

د الله تعالی تقدير ته غاړه کېږده، پرې راضي شه او له پښېمانۍ څخه مخکې د الله تعالی پرېکړه ومنه، که دا کار دې وکړ؛ نو ستا زړه ته به پوره ارام او ډاډ ترلاسه شي، له هرې پېښې څخه مخکې يې د مخنيوي ټولې لارې او لاملونه په کار اچوه؛ خو کله چې پېښه رامنځته شوه بيا ځان په سوچونو مه وژنه او دا مه وايه

لَوْ أَنِّي فَعَلْتُ كَذَا وَكَذَا، وَلَكِنْ قُلْ: قَدَرُ اللهِ وَمَا شَاءَ فَعَلَ

«چې که دا کار مې کړی وای داسې به شوي وای، بلکې هر څه چې پېښ شول دا به د الله تعالی تقدير و او هغه چې هر څه وغواړي تر سره کوي يې.»

يوولسم لامل

# په سختۍ پسې اسانتيا وي

اې انسانه! له لوږې او تندې وروسته مړښت، له شوګير وروسته خوب او له ناروغۍ وروسته روغتيا شته، کېدای شي ډېر ژر مسافر په کور شي، ستونزې ختمې او تيارې له منځه لاړې شي.

﴿فَعَسَى اللَّهُ أَن يَأْتِيَ بِالْفَتْحِ أَوْ أَمْرٍ مِّنْ عِندِهِ﴾

«خو لرې نه ده چې کله الله تعالی تاسې ته غوڅ بری در په برخه کړي.»

شپې ته د سپين سبا او غمجن ته د خوښۍ زېري شته، کله چې په سفر کې ستا مخې ته يوه اوږده دښته راشي که ته پر مخ روان يې او همت ونه بايلې؛ نو په دې باور وکړه چې په دې پسې به وروسته يو په زړه پورې شين چمن ستا مخې ته راځي او که ته هر څومره لوړ او پياوړی غر ووينې؛ نو په دې هم باور وکړه، چې نږدې ده د انسان په همت سره به دا هم ټوټې ټوټې شي او مخه به يې خلاصه شي.

له اوښکو سره خندا شته، له وېرې سره امنيت شته او له نا کرارۍ سره کراري او ارام شته، اور ابراهيم عليه السلام ځکه ونه ځېزه چې د توحيد د عقيدې له امله د رباني پاملرنې لاندې و او موسی عليه السلام د سيند له ډوبوونکيو څپو څخه د خپل هغه غښتلي پاخه اواز له امله خوندي شو چې د ورګډېدو پر مهال يې پورته کړ: ﴿إِنَّ مَعِيَ رَبِّي﴾

«له ما سره زما رب دی.»

هيڅکه هم له زيان سره نشم مخ کېدای، بې شکه له ما سره مې خپل رب ملګری دی، هغه به مې خپلې موخې ته رسوي.

نبي عليه السلام د خپل دښمن له ضرر څخه په غار (سمڅه) کې په همدغه وينا خوندي شوی و، چې خپل رېښتيني ملګري (ابوبکر صديق) ته يې ډاډ ورکاوه او ويې ويل:

﴿إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا﴾

«الله له موږ سره دی.»

څوک چې په خپل ژوند کې له کومې ستونزې سره مخ کېږي، له همدې امله چې خپل رب له خپل ځان سره نه بولي او نه ورته ځان ورسپاري؛ نو ته خپله سینه مه تنګوه، له الله جل جلاله نه مرسته غواړه او داسې فکر مه کوه، چې ګوندې هغه حالت چې ورسره مخ یې تل به وي، تر ټولو غوره عبادت دا دی چې له الله تعالی نه د ستونزو د حل په هیله کې ژوند کوې، ورځې اوړي را اوړي، زمانه بدلېږي، شپې تېرېدونکې دي او غیب زما او ستا له حواسو څخه پټ دی، الله تعالی هره ورځ ځانګړې پرېکړې رالېږي، له الله تعالی نه هیله ده چې ستا په اړه تر دې غوره پرېکړه راولېږي.

﴿إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا﴾

«بې شکه په هرې سختۍ پسې اسانتیا شته.»

دولسم لامل

## له ليمو نه خوږ شربت جوړ کړه

هوښيارسړی تاوانونه پر ګټو بدلوي او ناپوهه له يوه غم نه، دوه جوړوي.
نبي عليه السلام له مکې نه مدينې ته د قريشو له ظلم څخه پناه يووړه او مهاجر شو؛ خو هلته يې يو داسې په زړه پورې دولت رامنځته کړ چې د تاريخ غوړونه او سترګې پرې ډکې دي او ذهنونه يې له هېرولو بې وسه دي.

امام احمد بن حنبل رَحِمَهُ ٱللَّهُ زندان ته واچول شو، هلته په دورو ووهل شو، پايله يې دا شوه چې د اهل سنتو امام شو، شيخ الاسلام ابن تيميه رَحِمَهُ ٱللَّهُ بندي شو؛ نو له ځان سره يې پوره علم راوويست، امام سرخسي رَحِمَهُ ٱللَّهُ په شړ کوهي کې واچول شو نو په فقه کې يې شل ټوکه کتاب وليکه، امام ابن اثير رَحِمَهُ ٱللَّهُ بندي شو؛ نو جامع الاصول او نهايه يې وليکل، چې دا د احاديثو په علم کې تر ټولو غوره او منل شوي کتابونه دي، امام ابن الجوزي رَحِمَهُ ٱللَّهُ له بغداد څخه وويستل شو؛ نو د اوو قرأتونو زده کړه يې تر لاسه کړه او مالک بن الريب ته چې مرګونې تبه ورسېده د نړۍ ټولو خلکو ته يې يوه داسې قصيده تياره کړه، چې د عباسي دولت د سترو شاعرانو له ديوانونو سره برابره وه او د مضمون له مخې ډېره زړه راښکونکې او له پند ډکه وه.

ياد ساته!

هر کله چې دې مخې ته يوه پېښه راغله نو بل اړخ ته يې هم وګوره چې ستا لپاره پکې څومره ګټه شته او که څوک تا ته د لېمو له اوبو څخه ډک ګلاس درکړي؛ نو ته ورته يو دوه ګوټې بوره ورواچوه، که چا درته مار ډالۍ کړ؛ نو له ارزښته ډک پوستکی يې له پامه مه غورځوه، همدا شان که لړم دې وچيچي؛ نو پوه شه چې تا د مار د زهرو پر ضد يوه پياوړې وسله ترلاسه کړه.

﴿فَعَسَىٰٓ أَن تَكۡرَهُواْ شَيۡـٔٗا وَيَجۡعَلَ ٱللَّهُ فِيهِ خَيۡرٗا كَثِيرٗا﴾

«کېدای شي ته یو شی بد ګڼې او الله تعالی ستا لپاره په هغه کې ډېر خیر اچولی وي.»

د سختۍ دویم اړخ هم په پام کې لره، کېدای شي الله تعالی پکې ستا لپاره ډېر خیر، اجر او ثواب اچولی وي.

دیارلسم لامل

## څوک دی چې د رابللو پر وخت مرسته کوي؟

څوک دی چې غمجن سړی ورته لاس پورته کړي او هغه ورسره مرسته وکړای شي، ټول ولسونه، بلکې ټول کائنات ورته اړ دي، د نړۍ هر موجود ترې مرسته غواړي، په یاد سره یې ژبو ته خوند او زړونو ته ارام رسېږي؟ دا الله تعالی جل جلاله دی هغه د ټول مخلوق رب دی او له هغه پرته بل رېښتینی معبود نشته.

پر ما او تا لازمه ده چې په سختۍ، هوساینه،روغتیا، ناروغۍ او ټولو حالاتو کې هغه راوبلو او هغه ته وروګرځو، په غمونو او کړاوونو کې ورته نېک عملونه وسیله کړو او د ژړا او عاجزۍ په حالت کې یې دروازه ور وټکوو، تر دې چې موږ ته فتح او خوشحالي راوبښي

﴿أَمَّنْ يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ﴾

«څوک دی چې د بېکس بېوس دعا اوري.»

له هغه پرته بل څوک شته چې مرسته وکړي، کله چې یو غمجن یې د خپل غم لپاره راوبلي؟ الله تعالی هغه ذات دی چې په سیند لاهو کس له ډوبېدو ژغوري او ورک شوی کس بېرته پیدا کوي، پر مصیبت اخته کس له مصیبت څخه خلاصوي، ناروغ ته روغتیا وربښي، د مظلوم سره مرسته کوي او له دردمن څخه درد لرې کوي

﴿فَإِذَا رَكِبُوا فِي الْفُلْكِ دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ﴾

«کله چې دغه خلك په بېړۍ کې سپرېږي نو د الله تعالی نه په خالص اعتقاد سره دعا غواړي.»

مشرکین هم چې کله په کښتۍ کې سپاره او د سیند په وږونکیو څپو کې راګېر شي، په پوره اخلاص سره الله تعالی رابلي او هغه یې ژغوري؛ خو کله چې په سیند کې د ډوبېدو له خطر څخه خلاص شي؛ نو بیا یې

دا حال نه وي بيا له الله تعالى سره يو درجن باطل خدايان شريک بولي.
زه نه غواړم چې دلته درته له غم او پرېشانۍ څخه د خلاصېدو دعاګانې
راوړم، بلکې د هغو کتابونو په لور دې پام راړول غواړم چې په دې اړه د
حديثو په رڼا کې د دعاګانو او ذکرونو کتابونه وګورې په دې سره به ته
هغه ذکرونه زده کړې، چې د الله تعالى د ياد لپاره پخپله الله تعالى خپل
پېغمبر ته ښودلي او هغه دعاګانې به زده کړې، چې د الله تعالى د بللو
وړ وي، په همدې سره ته کولای شې چې الله تعالى ته ځان ورسوې او
کله چې دې هغه پيدا کړ، هر څه دې وموندل او که پر هغه باندې د
ايمان له راوړلو نه بې برخې شوې؛ نو هر څه دې وبايلل، ستا لپاره ستا
د رب رابلل ځانګړې عبادت او بندګي ده او پر هغو نعمتونو سربېره چې
ته يې له الله تعالى نه غواړې، يو ستر عبادت دی او څوک چې په ښه
توګه د دعا کولو پوهه لري هغه هېڅکله نه غمجن کېږي، د نړۍ ټول
غرونه به ونړېږي؛ خو د ده د هيلو رسۍ به هماغسې غښتلې وي، ټولې
دروازې بندېږي؛ خو د داسې کس دروازې د شپې او ورځې په اوږدو
کې تل تر تله خلاصې دي او هېڅکله نه بندېږي، الله تعالى نږدې دی،
اورېدونکی او دعا قبلوونکی دی، که هر بې وزله يې د خپل حاجت لپاره
راوبلي، هغه ورسره مرسته کوي.

الله تعالى پخپله تا ته وايي:

﴿ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ﴾

«ما راوبلئ، زه به مو دعاوې قبولې کړم.»

هغه په داسې حال کې چې ته ورته اړ يې درته وايي چې ما راوبوله، الله
تعالى غني دی، قوي دی، يو دی او د لوی شان والا دی، کله چې دې
مخې ته څه پېښه راځي يا له کوم غم او پرېشانۍ سره مخ کېږې، بې
له ځنډه د هغه دروازه وټکوه، د هغه په خواږه نوم خپلې شونډې او
ژبه وخوځوه او اواز پرې وباسه، مرسته ترې وغواړه، فتح او نصرت ترې
وغواړه، خپل تندی د هغه د نوم لپاره په خاورو کېږ کړه، د دې لپاره چې

د ازادۍ تاج په سر کړي، پوزه د هغه د بندګۍ لپاره په خاوره خړه کړه، د دې لپاره چې خلاصی ترلاسه کړې، خپل لاسونه د الله تعالی په در کې لپه کړه، خپله ژبه وچلوه، له الله تعالی څخه په غوښتنه کې ډېر زیار وباسه، د هغه په دروازې پورې ځان ونښلوه، د نرمۍ هیله ترې وکړه، د فتحې انتظار یې وکړه، ښه ګمان پرې وکړه، هغه ته ځان له نور هر څه نه وزګار کړه او بالاخره ځان ټول هغه ته وربښه؛ نو ته به نېکمرغه او بریالی شې.

څوارلسم لامل

## په کور کېنه

شرعي خلوت (يواځېتوب) تا له شر، شريرانو، وزګارو او بېکاره خلکو او د هغوی له بيګارونو لرې ساتي، که ته شرعي خلوت خپل کړې؛ نو ټول کارونه به دې سم او فکر به دې برابر وي، هيڅ بوج به دربانديې نه وي او په ارام سره به دمه ژوند وکړې، ذهن به دې هم کار کولو ته تيار وي، په فکر کې به دې د حکمتونو مرغلرې راټوکېږي او سترګې به دې د حکمت او زده کړې په باغونو کې څر کوي.

بې شکه چې يواځېتوب له هر ډول بې کارۍ او ناوړه کارونو څخه د خونديتوب لامل دی او دا د نېکو کارونو لپاره په زړه پورې نسخه ده، چې د زړونو ډاکټرانو تجربه کړې او پرې بريالي شوي هم دي او دا يې ګټوره نسخه بللې.

په يواځېتوب کې له بې ځايه وخت تېرېدلو، د فکر خونديتوب، له الله تعالی څخه د وېرې تل پاتې والي او د انابت او تذکر ډېر والي دی، هو! ځينې مجلسونه له يواځېتوب څخه ډېر ګټور دي، چې هغه د جمعې د لمانځه، د علم او دعوت او داسې نور مجلسونه دي، له دې پرته له نورو بې ځايه ناستو ولاړو او منډو رامنډو څخه ځان وساته، د دې پر ځای په خپل کور کې کېنه، له ځان سره د خپلو عملونو په اړه سوچ وکړه، پخپلو ګناهونو وژاړه او د ژبې ساتنه وکړه، بې ځايه ناسته ولاړه د نفس لپاره د جنګ مثال لري او دا په نفس کې د امن نړۍ له خطر سره مخ کوي، ځکه ستا ناسته ولاړه له بې ځايه خلکو سره ده، هغه خلک چې غواړي بې ځايه ويناوې خپرې کړي، ستا نفس له يوه نا اشنا خطر سره مخ کوي او په زړه کې دې فتنې او ګډې وډې خبرې روزي، تر دې چې له مرګ سره مخ شي.

﴿لَوْ خَرَجُوا فِيكُم مَّا زَادُوكُمْ إِلَّا خَبَالًا﴾

«که دوی له تاسې سره جنګ ته ووځي؛ نو په تاسې کې به له نقصان پرته بل هیڅ شی زیات نه کړي.»

نو زما یواځینۍ هیله دا ده چې پخپل کور کې کېنه، خپل کار ته پام راواړوه او د نېکۍ کارونو ته مخه کړه، هر کله دې چې دې دا کار وکړ ستا زړه به راټول شي او له هر ډول غمونو څخه به بې غمه شې؛ نو خپل وخت له بربادولو وساته، ژبه له غیبت نه وساته، زړه له غم او بدګمانۍ نه او غوږونه له موسیقۍ نه وساته، چا چې تجربه وکړه پوه به شي چې دا ډېره ارزښتناکه نسخه ده او چا چې خپل ځان د وهمونو پر سپرلۍ سپور کړ او له عوامو سره مجلسونو ته یې وخت ورکړ؛ نو ووایه، چې پر ده دې سلام وي او بس.

پنځلسم لامل

## له الله څخه بدله وغواړه

کوم شی چې الله تعالی درڅخه واخلي، بدل به يې هرو مرو درکوي؛ خو دا هله چې ته صبر وکړې او ثواب يې وبولې.

مَنْ أَخَذْتُ حَبِيبَتَيْهِ فَصَبَرَ، عَوَّضْتُهُ مِنْهُمَا الْجَنَّةَ

«له چا نه چې په دنيا کې سترګې واخيستل شوې او صبر يې پرې وکړ؛ نو زه به په بدل کې جنت ورکړم.»

مَنْ سلبت صَفِيَّهُ مِنْ أَهْلِ الدُّنْيَا، ثُمَّ احْتَسَبَ، عِوَضْتُهُ مِنَ الْجَنَّةُ

«څوک چې په دنيا کې خپل دوست له لاسه ورکړي، زه به په جنت کې د هغې ښه بدله ورکړم.»

او د چا چې اولاد مړ شو او صبر يې پرې وکړ، الله تعالی په جنت کې کور ورکوي، چې د بيت الحمد په نامه به نومول شوی وي.

نو په يوه مصيبت هم مه غمجن کېږه، ځکه دا څه چې تا ته رسېږي، الله تعالی يې ستا لپاره په بدله کې جنت او نعمتونه ليکلي او ډېر لوی اجر ليکلی دی.

بې شکه د الله تعالی نېک بندګان چې په دنيا کې يې ډول ډول سختۍ او ستونزې ګاللې وي په قيامت کې به ورته ويل کېږي

﴿سَلٰمٌ عَلَيْكُم بِمَا صَبَرْتُمْ فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ﴾

«پر تاسې دې سلام وي دا ستاسې د صبر له امله؛ نو اوس دا ستاسې لپاره ډېر په زړه پورې له نعمتونو ډک کور يعنې جنت دی.»

پر موږ لازمه ده چې د مصيبت او غم په بدل کې د هغې د ثواب او بدلې طمع وکړو او هيله مو دا وي، چې الله تعالی به موږ ته تر دې غوره راکوي.

﴿أُولَٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوٰتٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ ۖ وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُونَ﴾

«پر دې خلکو د الله تعالی له لورې ښېښنه او رحمت دی او همدوی پر

سمه لاره روان دي، هغو خلکو ته زېرى او مبارکي ده، چې پر مصيبتونو او غمونو اخته وي كه دوى صبر وكړي الله تعالى به ورته په جنت كې ډېر ښكلى كور وركوي.»

تاسې باور وكړئ چې د دنيا ډېر لږ او لنډ ژوند دى، د دې دنيا خزانې سپكې دي او اخرت غوره او تلپاتې دى؛ نو څوک چې دلته له مصيبتونو او غمونو سره مخ شو دا ورته د قيامت له مصيبتونو څخه امان دى او څوک چې دلته سترى شو په قيامت كې به دمه شي؛ خو د دنيا عاشقانو خپل زړونه په دنيا پورې تړلي دي، له دې امله د دوى پر زړه تر دې سخت بل حالت نه وي، چې د دنيا په اړه له څه پېښې سره مخ شي، د دوى برخې په دنيا كې دوى ته ورپوره كېږي او راحت يې په دنيا پورې ځانګړى دى، ځكه دوى يواځې همدا دنيا غواړي، له دې امله د دنيا مصيبتونه ورته ستر ښكاري، ځكه دوى خپلې مخې ته ګوري؛ نو له دې نيمګړې دنيا پرته نور هيڅ نه ويني.

اى په غمونو اخته خلكو! له تاسې څخه كوم شى له لاسه نه دى وتلى او تاسې په ګټه كې ياستئ، تاسې ته يو ليک راغلى او په ډېر لطف، نرمۍ او مينې سره يې دا پيغام درته وراندې كړى دى، چې ستا د مصيبت بدله په دې توګه ده:

﴿فَضُرِبَ بَيْنَهُم بِسُورٍ لَّهُ بَابٌ بَاطِنُهُ فِيهِ الرَّحْمَةُ وَظَاهِرُهُ مِن قِبَلِهِ الْعَذَابُ﴾

«بيا به د هغو ترمنځه يو دېوال درول شي چې په هغه كې به يوه دروازه وي، په هغې دروازه كې دننه به رحمت وي او بهر عذاب.»

يعنې ستا او د نعمتونو ترمنځ د دنيا ژوند يوه پرده ده، چې په ښكاره توګه ستا لپاره په دې كې زحمتونه دي؛ خو په اصل كې دا ستا لپاره نعمتونه دي او هغه نعمتونه چې له الله تعالى سره دي غوره دي، تلپاتې دي، ډېر مبارک دي، ښه تېرېدونكي دي، د لوى شان والا او لوړې مرتبې والا دي.

شپاړسم لامل

## ايمان، يو مکمل ژوند دی

تر ټولو بدمرغه خلک هغه دي چې الله تعالی د ايمان له خزانو او د يقين له رڼا څخه بې برخې کړي وي، دوی به د تل لپاره په غمونو، خوارۍ او ذلت کې وي.

﴿وَ مَنْ اَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِىْ فَاِنَّ لَهٗ مَعِيْشَةً ضَنْكًا﴾

«او څوك چې زما له ((ذکر)) د نصيحت له درس نه مخ واړوي، د هغه لپاره به په دنيا کې تنګ ژوند وي.»

نه به يې زړه خوشحاله شي، نه به پاک شي او نه به له غمه خالي شي، د دې لپاره يو لامل دی، چې هغه پر الله تعالی جل جلاله ايمان دی، له ايمان پرته له سره په ژوند کې مزه نشته.

اذالايمـان ضـاع فـلا حيـاة

ولا دنيـا لمـن لـم يـحی دينـا

«هر کله چې ايمان له منځه لاړ؛ نو ټول ژوند له منځه لاړ او د هغه چا لپاره دنيا نشته چې خپل دين ژوندی ونه ساتي.»

هغه ملحدين چې پر الله تعالی ايمان نه لري، د خپلې هوساينې لپاره تر مرګه زيات د راحت لامل بل نهويني او هرکله، چې له دنيوي ستونزو سره مخ شي؛ نو ځانونه وژني د دوی خومره سخت ژوند دی، چې د ژوند د دغې سختۍ لامل يواځې او يواځې د الله تعالی پر ذات او د قيامت پر ورځ د ايمان نه درلودل دي، د هر هغه چا به همدا حال وي چې د الله تعالی له رالېږلي قانون څخه سرغړونه کوي.

﴿وَ نُقَلِّبُ اَفْـِٕدَتَهُمْ وَ اَبْصَارَهُمْ كَمَا لَمْ يُؤْمِنُوْا بِهٖۤ اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّ نَذَرُهُمْ فِیْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ﴾

«موږ په هماغه شان د دوی زړونه او نظر اړوو لکه څنګه چې ړوی لومړی

ځل پرې ایمان نه و راوړی. موږ دوی د دوی په همدې سرکشۍ کې لا لهانده پرېږدو.»

پر خلکو داسې وخت راغی، چې ټولو د الله تعالی پر ذات قناعت وکړ او غاړه یې ورته کېښودله، د توحید پر کلمه یې ایمان راوړ او دا د پېړیو پېړیو له تجربو وروسته کله چې دوی په ښکاره توګه ولیدل، چې بتان هیڅ شی نه دی، هیڅ ګټه او ضرر نشي رسولای او دا هسې بې ګټې خرافات دي کفر د لعنت وړ دی او الحاد درواغ دي، پېغمبران رېښتیني دي او الله تعالی حق دی، هغه د بادشاهانو بادشاه دی، د هغه لپاره ستاینې دي او هغه پر هر شي ځواکمن دی.

پر الله تعالی باندې ستا د ایمان په کچه به ستا په زړه کې اطمینان، راحت، ارام او قوت وي، چې همدا ستا لپاره پوره نېکمرغي ده او پوره اطمینان دی.

﴿مَنْ عَمِلَ صَالِحًا مِّنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَلَنُحْيِيَنَّهٗ حَيٰوةً طَيِّبَةً ۚ وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ﴾

«هر څوک چې ښه عمل وکړي، که هغه نارینه وي او که ښځه، په دې شرط چې مؤمن وي پر هغه به موږ په دنیا کې سپېڅلی ژوند تېر کړو او (اخرت کې به) دغسې خلکو ته د هغو اجر له ډېرو ښو عملونو سره سم ورکړو.»

په پورتني ایت کې له خوښۍ ډک ژوند همدغه اطمینان، راحت او ارام دی، چې د مؤمن په زړه کې وراچول کېږي او کافر یې په کروړونو او اربونو روپو نشي ترلاسه کولای. رَضِيتُ بِاللهِ رَبًّا، وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا، وَبِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبِيًّا وَّرَسُوْلًا «زه پر الله تعالی د رب په توګه پر اسلام د دین په توګه او پر محمد صلی الله علیه وسلم د پېغمبر په توګه خوښ او راضي یم.

الحمد لله علی ذالک.

اوولسم لامل

## له نرمۍ کار واخله

نرمي چې په هر شي کې راشي، ښکلا وربښي او کوم شی چې ترې بې برخې شي، هغه بد ښکاري. په وینا کې له نرمۍ کار اخیستل او له خندا ډکه خوله او حیا هغه څه دي، چې انسان ته نېکمرغي وربښي، ښایسته خبره او له مسلمان سره د مخ کېدو پر مهال هغه ته داسې څه ویل، چې زړه یې پرې ښه شي، د نېکمرغو خلکو ګاڼه ده او دا د مسلمان صفت دی، د دې مثال داسې دی، لکه مچۍ چې ښه خواړه خوري او ښه شیان (شهد) جوړوي او کله چې پر یوه ګل کېني نه یې شوکوي، ځکه الله تعالی د نرمۍ په بدل کې هغه څه ورکوي چې د سختۍ په بدل کې یې نه ورکوي، په ټولنه کې هر ډول خلک شته ځینې یې داسې دي چې خلک یې په یوه مجلس کې د راتلو لپاره لارې څاري او دا ځکه چې په هر یوه کار کې یې له خلکو سره له نرمۍ او نېکې رویې کار اخیستی دی؛ خو ځینې داسې هم شته چې مجلس ته په راتلو سره یې خلک خواشیني کېږي دا بدمرغه خلک بد اخلاقه دي؛ نو ځکه یې څوک په خوا کې کېناستلو ته نه خوشحالېږي.

د دوستانو ګټل ځانګړی فن دی، چې نېکان او هوښیار خلک پرې پوهېږي، دوی تل هڅه کوي، چې له خلکو سره ښې اړیکې جوړې کړي او ټول خلک دوستان کړي؛ خو که پر دې نه کېږي؛ نو بیا د دې لپاره له الله تعالی نه دعاګانې غواړي.

د دې نېکمرغه خلکو لپاره د ښو اخلاقو ځانګړی قانون وي چې عنوان یې دا دی:

﴿ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ فَإِذَا الَّذِي بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ عَدَاوَةٌ كَأَنَّهُ وَلِيٌّ حَمِيمٌ﴾

«ته د بدۍ مخنیوی په هغې نېکۍ سره وکړه چې هغه ډېره ښه وي ته به وګورې چې له تا سره چې د چا دښمني لوېدلې وه، هغه دې لکه

صمیمي دوست گرځېدلی دی.»
دوی په خپلو عاطفو سره د خلکو د کینو دېوالونه نړوي، په خپل صبر د خلکو بدۍ پر نېکیو بدلوي، بدي یې هېروي او نېکۍ یې یادوي چې له دې امله یې خلک له شر نه په امان کې وي او له همدې امله مسلمان بلل کېږي.

اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ
«مسلمان هماغه دی چې نور خلک یې د ژبې او لاس له ضرر نه خوندي وي.»

وَالْمُؤْمِنُ مَنْ أَمِنَهُ النَّاسُ عَلَى دِمَائِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ
«او مؤمن هغه چا ته ویل کېږي، چې نور خلک ترې د خپلو وینو او مالونو په اړه په امن کې وي.»

ان الله امرني ان اصل من قطعني وان اعفو عمن ظلمني وان اعطي من حرمني
«الله تعالی ما ته امر کړی دی چې له هغه چا سره خپلوي جوړه کړم چې هغه یې له ما سره پرې کوي او هغه څوک وبښم، چې پر ما ظلم وکړي او هغه چا ته ورکړه وکړم، چې ما ته څه نه راکوي.»

﴿وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ﴾
«غصه خوړونکي دي او خلکو ته ښښنه کوونکي دي.»
د پورتنیو صفتونو خاوندانو ته زېری دی چې الله تعالی به ورته ډېر ژر ښایسته بدله، د زړه ډاډ او اطمینان ور په برخه کړي.

من سالم الناس یسلم من غوائلهم
ونام وهو قریر العین جذلان

«د چا له شر نه چې خلک خوندي شول ، دی به د دوی له شر نه خوندي وي او په داسې حال کې به ویده کېږي، چې سترګې به یې یخې او ښه به ارام وي.»

د دې ترځنګ داسې کس ته د اخروي ثواب زېری دی، چې دا ډېر ستر ثواب او اجر دی، په دې کې ډېر زيات نعمتونه دي په زړه پورې باغونه او ښکلې ويالې دي.

اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْجَنَّةَ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ النَّارِ.

اتلسم لامل

## د الله تعالی ذکر د خوښۍ او ډاډ لامل دی

رښتیا ویل الله تعالی ته خوښ دي، څرګنده وینا د زړونو صابون دی، تجربه یو ډول دلیل دی او د زړه د خوښۍ لپاره له ذکر نه غوره بل عمل نشته.

﴿فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ﴾

«تاسې ما یاد کړئ، زه به تاسې یاد کړم.»

د الله تعالی یاد په دنیا کې د انسان لپاره جنت دی او له ستړیاوو څخه د زړونو راویستل دي، بلکې دا د هر بریالیتوب او کامیابۍ لپاره لار ده، ته د قرآن او حدیث مطالعه وکړه، چې د ذکر له ګټو څخه خبر شې او پر دې لړه تجربه هم وکړه، چې له ډول ډول ناروغیو څخه خوندي شې او روغتیا درته په برخه شي، د الله تعالی په یاد سره له هر ډول وېرې، غم، خپګان او ناروغۍ څخه روغتیا ترلاسه کېږي او دا داسې نېکي ده چې په ترسره کولو یې د هر ډول غم او درد پیاوړي غرونه راورانېږي.

دا د حیرانتیا خبره نه ده، چې د الله تعالی په یاد سره د خلکو زړونو ته سکون رسېږي، بلکې د حیرانتیا خبره دا ده چې د الله تعالی له ذکر نه غافل خلک څنګه ژوند کوي؟!

﴿أَمْوَاتٌ غَيْرُ أَحْيَاءٍ ۖ وَمَا يَشْعُرُونَ أَيَّانَ يُبْعَثُونَ﴾

«دوی مړه دي ژوندي نه دي او نه پوهېږي، چې کله به بېرته راپورته کېږي.»

ای د نړۍ دردېدلیه!

ای له دردونو او غمونو څخه په ژړا سر انسانه!

راشه د الله تعالی په سپېڅلي نامه خپله ژبه وخوځوه او د خپل زړه درمل پرې وکړه.

څومره ډېر چې د الله تعالی ذکر کوې، ستا زړه به له پراخې خوښۍ سره مخ کېږي، ارام به ورته رسېږي، له نفس سره به دې مرسته کوي او ضمیر به دې په راحت کې وي، ځکه د الله تعالی په ذکر کې پر هغه باندې د توکل، باور، هغه ته د ورګرځېدو، پر هغه د نېک ګمان او د خوښۍ د راتلو د انتظار معنی پرته ده؛ نو الله تعالی نږدې دی، د هر بلونکي اواز او غوښتنه اوري، اورېدونکی او د دعاګانو قبلوونکی دی؛ نو په ډېره عاجزۍ مینه او زارۍ سره د هغه نوم واخله، د خپلو ستونزو د حل لپاره یې راوبله، مرسته ترې وغواړه، ستاینه یې وکړه او ښښنه ترې وغواړه، بې شکه الله تعالی د دې وړ دی، چې د خپلو ټولو ستونزو د حل لپاره راوبلل شي او هغه د هر عمل بدله ورکوي او له خپلو بلونکیو څخه هېڅکله خپلې مرستې نه سپموي:

﴿فَآتَاهُمُ اللَّهُ ثَوَابَ الدُّنْيَا وَحُسْنَ ثَوَابِ الْآخِرَةِ﴾

«الله تعالی دوی ته د دنیا د ثواب ترڅنګ د اخرت غوره بدلې هم ورکړې.»

نولسم لامل

## له چا سره کينه مه کوه

کينه يوه ناکاره او اوږده ناروغي ده، چې هډوکي خوري او بدن فاسدوي، چا ويلي دي:

لا راحة لحسود فهو ظالم في ثوب مظلوم وعدو في جلبب صديق

«د حاسد سړي لپاره راحت نشته، ځکه دا د مظلوم په جامه کې ظالم او د دوست په جامه کې دښمن دی.»

له هوښيارانو نه رارسېدلې دي چې وايي:

((حسد نا اشنا عدل لري، ځوک چې يې پيل کړي؛ نو له مرګ پرته يې نه پرېږدي)).

له حسد څخه ډېره کول زما لومړی پر ځان او بيا پر تاسې پېرزو دي، ځکه په حسد سره زموږ او ستاسې غوښې د غم په وړاندې ډالۍ کېږي، په دې سره درد او رنځ زموږ د زړه زور ختموي او وينه مو وچوي.

حاسد سړی سره له دې چې په حسد سره هيڅ ګټه نشي کولای، د خپل حسد له امله له يو لړ ناروغيو سره مخ کېږي او د خوښۍ ژوند له لاسه ورکوي، بدمرغه حاسد د الله تعالی له قضاء سره په ټکر کې دی، د الله تعالی پر ذات د ظلم تور لګوي، دا تر ټولو ستر بې ادبه او بې ډبه دی او د شريعت د منهج مخالف دی.

حسد يوه داسې ناروغي ده، چې په دې ناروغيو پروت انسان له درد سره مخ دی؛ خو له اجر او ثواب څخه بې برخې دی، پر انسان باندې هر ډول راتلونکي ناروغۍ د هغه لپاره د اجر او ثواب لامل دی؛ خو حسد داسې امتحان دی چې هيڅ اجر پرې نه ترلاسه کېږي او نه يې څه ګټه شته، بلکې د حسد سپرغۍ چې کوم زړه وواهه، هغه زړه د تل لپاره سوځي او د ژوند په اوږدو کې يې درد نه په ارامېږي، د هر ناروغ لپاره درمل شته؛ خو حاسد درمل نه لري، هر رنځ پای لري؛ خو د حسد پای

نشته، حاسد الله تعالی د شر مرجع ګڼلی او لارښوونه یې کړې چې پنا ترې وغواړئ.

﴿وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ﴾

«زه د حاسد له شر نه په الله تعالی پورې پنا غواړم کله چې حسد ښکاره کړي.»

حاسد د تور مار پشان دی، تر هغې نه ارامېږي چې خپل زهر یې په یوه بې ګناه جسم کې پرېښي نه وي له دې امله درته په ډېر ټینګار سره له حسد څخه د ځان ژغورنې لارښوونه کوم او د ځان لپاره هم له دې ناروغۍ او د حاسد له شر څخه پنا غواړم.

شلم لامل

# خپل ژوند بدلول مه غواړه

په دنیوي ژوند کې پر انسان هر ډول حالات راځي او له دنیوي نعمتونو څخه په هر نعمت کې یو ډول نیمګړتیا موندل کېږي، ټول په ټوله هیڅ شی پوره نه وي، کور، ښځه، بچي، دوستان، دنده او داسې نور شیان، چې انسان یې لري په ټوله معنی پوره نه دي، ارو مرو به له یوه اړخه یوه ستونزه لري؛ خو هوښیار سړی هغه دی چې د دې هر څه غوره والی او بهتري راپه زړه کړي او بدي یې هېره کړي.

الله تعالی دا نړۍ د متضادو شیانو د جمع کوونکې په توګه پیدا کړې، خیر او شر، اصلاح او فساد، غم او ښادي او داسې نور، ډېر شیان شته چې پخپلو کې سره مخالف بلل کېږي؛ خو په دې نړۍ کې په یوه وخت کې موندل کېږي، ډېر ځل داسې هم کېږي چې په یوه کور کې غم او ښادي دواړه سره یو ځای شي.

په یوه حدیث کې راغلي دي:

الدُّنْيَا مَلْعُونَةٌ، مَلْعُونٌ مَا فِيهَا، إِلَّا ذِكْرَ اللهِ وَمَا وَالَاه، وَالْعَالِمُ، وَالْمُتَعَلِّمُ

«دا دنیا ټوله د الله تعالی له رحمت څخه لرې ده او هر څه چې په دې کې دي د الله تعالی له رحمت نه لرې دي، پرته د الله تعالی د ذکر او هغه چې له دې سره تړاو لري او د دین عالم او د دین زده کوونکی.»

له دې امله د ځان لپاره د خپل ژوند له واقعیتونو سره سمه تګلاره خپله کړه او له خیالاتو او وهمونو سره مه درومه.

خپل ځان د خپل ژوند د چارو لپاره تیار کړه، کله نا کله کېدای شي ته په خپل ژوند کې هیڅ یو رښتونی دوست پیدا نه کړې او نه کوم کار سرته ورسوې، ځکه رښتینولي او بشپړتیا د دې نړۍ له صفاتو څخه نه ده.

کېدای شي ستا ښځه ستا په طبعه برابره نه وي؛ خو حدیث کې راغلي دي.

لا يفرك مومن مومنة ان كره منها خلق رضي اخر

«یو مسلمان دې خپله مسلمانه ښځه کمه نه ګڼي، که د هغې یو خوی یې خوښ نه وي، بل به یې خوښ شي.»

له دې امله پکار ده چې ته ځان پیاوړی کړې، له خلکو سره نږدې اړیکې ولرې، له تېروتنو یې مخ واړوې، بدی یې وبښې، له خلکو سره د اسانتیاوو څخه کار واخلې، کله د یوې موضوع په اړه سترګې پټې کړې او له ځینو کارونو څخه ناخبري وښیې.

یویشتم لامل

## غم ځپلیو ته وګوره

که ته ښې او کینې خوا ته وګورې؛ نو ډېر زیات غم ځپلي به ووینې، موږ وینو چې له هر کور نه د غم ځپلو د ژړا اواز راځي او هر اننګی د غم له امله د ژړا په اوښکو لوند دی.

په نړۍ کې څومره غمونه او څومره خلک شته چې پر غمونو صبر کوي؟ په دې غمونو او مصیبتونو کې ته یواځې نه یې، بلکې هغه څه چې تا ته رسېدلي دي د نورو په پرتله ډېر کم دي، ته فکر وکړه ډېر داسې ناروغان شته چې په کلونو کلونو په کټونو کې پراته دي او پخپله په ډډه نشي اووښتلی، بلکې د کور له غړیو څخه یو بل څوک یې په ډډه اړوي.

ډېر خلک داسې دي چې له مودو راهیسې په زندانونو کې دي، نه یې لمر تر سترګو کېږي او نه د نړۍ نورې مزې لیدلای شي، ډېرو خلکو ځواني له لاسه ورکړې او ډېر په پورونو او نورو ډول ډول مصیبتونو اخته دي.

دا هر څه تا ته د دې خبرې پوره درس دی، چې دا دنیا د مؤمن لپاره د زندان مثال لري، چې له غمونو او کړاوونو ډکه ده، سهار به یوه بنګله پخپلو اوسېدونکیو ښکلې وي؛ خو ماښام به بیا پر ځمکه پرته وي، همدا شان ګڼ شمېر انسانان به د سهار په وخت په پوره خوښۍ سره خپل کور کې له خپل مور، پلار، خویندو، ورونو، ښځې او اولادونو سره ناست وي له یو بل سره به د زړه خواله کوي؛ خو ماښام به دغه ټول هر څه په ناروغی، بېلتون، مرګ او فقر پای ته ورسېږي او په خواشینۍ به بدل شي.

له دې امله ته پخپلو نعمتونو شکر وباسه او د تل لپاره د دنیا په چارو کې له ځانه ښکته خلکو ته ګوره او هره ستونزه چې ته ورسره مخ شوی یې د ځان لپاره د اجر او ثواب لامل وبوله.

د نبي علیه السلام ژوند ستا لپاره تګلاره او کړنلاره ده، په هغه صلی الله علیه وسلم خځلې راغورځول شوي، پښې مبارکې یې وینې شوې دي، مخ مبارک یې زخمي شوی دی، په تنګو نالو، درو او تنګیو کې کلا بند شوی دی، په ښځه یې د زنا (دروغجن) تور لګول شوی دی، د ونو پاڼې یې خوړلي دي، له مکې نه ویستل شوی دی، غاښونه مبارک یې شهیدان شوي دي، له ملګرو څخه یې په یوه ځای اویا کسان په شهادت رسېدلي دي، د ده په ژوند د ده زامن مړه دي، له لوږې یې په ګېډه پورې تیږي تړلي دي، شاعر، لېونی، کاهن، جادوګر او دروغجن بلل شوی دی، الله تعالی له دې هر څه سره له هغه سره مرسته کړې ده؛ خو هغه په دې هر څه صبر هم کړی دی، هېڅکله یې خپله حوصله له لاسه نه ده ورکړې او دا پر هغه ډېر ستر ازمېښت و، له هغه صلی الله علیه وسلم نه مخکني پېغمبران هم له ډول ډول ازموینو سره مخ شوي وو، لکه زکریا علیه السلام وژل شوی و، یحیي علیه السلام غرغره شوی و، موسی علیه السلام په وړوکتوب کې له موره بېل شوی و، ابراهیم علیه السلام په اور کې غورځول شوی و او همدا شان صحابه کرام رضي الله عنهم هم له ډول ډول مصیبتونو سره مخ شوي وو، لکه عمر رضي الله تعالی عنه ، عثمان رضي الله عنه، علي رضي الله عنه، بلال رضي الله عنه او داسې نور او د دین له امامانو څخه هم بېل بېل له ډول ډول ازموینو سره مخ شوي وو:

﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَن تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُم مَّثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِن قَبْلِكُم ۖ مَّسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ وَزُلْزِلُوا﴾

«ایا تاسې دا انګېرئ چې همداسې به جنت ته ننووځئ، په داسې حال کې چې لا تر اوسه پر تاسې هغه هر څه نه دي تېر شوي، چې له تاسې نه پر مخکنیو مؤمنانو راغلي دي؟ پر هغو ستونزې راغلې، کړاوونه ورته ورسېدل، ولړزول شول.»

دوه ویشتم لامل

## لمونځ

﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ﴾

«ای مؤمنانو په صبر او لمانځه له الله تعالی نه مرسته وغواړئ.»

هر کله چې له وېرې سره مخ شې، غم درباندې برید وکړي، له ځنډ پرته لمانځه ته پورته شه په دې سره به ستا روح ته ارام ورسېږي، غمونه او پرېشانی به دې ټولې له منځه لاړې شي، نبي علیه السلام به هم د یوه کار د سختۍ یا بوج کېدو پر مهال لمانځه ته مخه کوله، هغه به بلال رضي الله تعالی عنه ته ویل: بلاله! په لمانځه سره موږ ته ارام راوبښه؛ نو لمونځ د هغه لپاره د سترګو یخوالی او د زړه ارام و.

ما د پخوانیو ولسونو تاریخ کتلی دی، هغوی هم خپلې ستونزې په لمانځه اوارولې.

صلوة خوف (د وېرې لمونځ) د دې لپاره مشروع شوی دی، چې دا د وېرې په حالت کې وشي، د دې لپاره چې امن راشي او مسلمانان پر دښمن برلاسي شي.

هغه ولسونه چې پر روحي ناروغیو اخته دي، دوی ته پکار ده چې له جومات او لمانځه سره خپل تړاو جوړ کړي په دې سره به د دوی ټوله پرېشاني له منځه لاړه شي او ناروغي به یې پر روغتیا بدله شي، ارام او ډاډ به ورته تر لاسه شي.

که موږ له ځان سره په خپل ګرېوان کې سوچ وکړو؛ نو پینځه وخته لمونځ زموږ لپاره ډېر لوی نعمت دی چې په دې سره موږ ته د شپې او ورځې په اوږدو کې ټول ترسره شوي ګناهونه ببښل کېږي او د الله په وړاندې مو درجې لوړېږي؛ نو له دې امله دا زموږ د ډېرو داسې ناروغیو درمل هم دی، چې له دې پرته بل درمل نه لري، دا زموږ په زړونو کې د الله تعالی پر ذات د یقین کچه زیاتوي، زړه مو له ایمان څخه ډکوي،

د الله تعالی پر تقدیر خوښي رابښي؛ خو څوک چې له جوماتونو څخه لرې وځي او لمونځ ته شا کوي؛ نو د دوی ژوند به د تل لپاره تنګ، سخت او له غمونو او بدمرغیو ډک وي.

﴿فَتَعْسًا لَّهُمْ وَ اَضَلَّ اَعْمَالَهُمْ﴾

«نو د هغو لپاره هلاکت دی او الله تعالی به د هغو عملونه برباد کړي.»

درویشتم لامل

## زموږ لپاره الله تعالی بس دی

﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَ نِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾

ځان او خپل کارونه الله تعالی ته ورسپارل او پر هغه تکیه او باور کول، د هغه ژمنې رښتینې ګڼل، په پرېکړو یې خوښ اوسېدل، ښه ګومان پرې کول او له ټولو ستونزو نه د وتلو لپاره د هغه دروازه ټکول او مرستې ته یې سترګې په لار اوسېدل، د ایمان تر ټولو غوره مېوه او پایله ده او دا د مؤمنانو ستر صفت دی او هر کله چې یو انسان د خپلو ټولو چارو په اړه د ښو پایلو په اړه ډاډمن شي او په ټولو چارو کې په خپل رب باور وکړي؛ نو د سر په سترګو به د الله تعالی لخوا نه مرسته، کومک، کفایت، تائید او نصرت وګوري.

ابراهیم علیه السلام اور ته د غورځېدو پر مهال وویل:

﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَ نِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾

نو الله تعالی ورته اور یخ او له امنه ډک کړ.

نبي علیه السلام چې هر کله د دښمن له لورې له وېرې سره مخ شو ویې ویل:

﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَ نِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾

نو پایله یې دا شوه، چې:

﴿فَانْقَلَبُوْا بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَ فَضْلٍ لَّمْ يَمْسَسْهُمْ سُوْٓءٌ ۙ وَّ اتَّبَعُوْا رِضْوَانَ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَظِيْمٍ﴾

«په پای کې هغوی د الله تعالی له نعمت او لورینې سره بېرته ستانه شول، هغو ته هیڅ راز زیان هم ونه رسېده او د الله تعالی له خوښې سره سم تګ کولو مرتبه یې هم وموندله، الله تعالی ډېر ستر لوروونکی دی.»

انسان په یواځې ځان نشي کولای، چې د پېښو په وړاندې مقاومت

خو کله چې د الله تعالی
وکړي، ځکه چې دی کمزوری پیدا شوی دی؛ او له هغه نه
پر ذات توکل وکړي، پر هغه ځان وروسپاري، باور پرې وکړي
مرسته وغواړي؛ نو بیا یې ټولې ستونزې په اسانۍ سره اوارېږي:
﴿وَعَلَى اللّٰهِ فَتَوَكَّلُوٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ﴾
«یواځې پر الله ځان وسپارئ، که رښتیا مؤمنان یاستئ.»
له دې امله هر څوک چې پر ځان پېرزو لري، پر الله تعالی دې تکیه
وکړي، خپل ټول کارونه دې هغه ته وروسپاري او تل دې ووایي:
﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾
«زما لپاره الله تعالی پوره دی او هغه ښه ساتونکی دی.»
په دې سره به د ده ټولې ستونزې هوارې او مسئلې به یې حل شي.
مسلمانه وروره!
که کله دې مال کم شو، پوروونه درباندې ډېر شول او د خلاصون لاره
درنه ورکه شوه نو ووایه:
﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾
که ناروغه شوې او ناروغي دې سخته شوه؛ نو اواز وکړه:
﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾
که له دښمن څخه له وېرې سره مخ شوې یا د ظالم له ظلم نه وېرېدې؛
نو اواز وکړه:
﴿حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ﴾
او که له بلې هرې ستونزې سره مخ شوې؛ نو خپل رب د ځان لپاره پوره
وګڼه او هغه د مرستې لپاره راوبله خپلې هیلې له الله تعالی پرته په نورو
مه تړه، له هر څه نه نهیلی شه؛ خو د الله تعالی له دروازې مه نهیلی
کېږه، هغه هرو مرو ستا مرسته کوي او ستا مشکلات له منځه وړي .
﴿وَكَفٰى بِرَبِّكَ هَادِيًا وَّنَصِيْرًا﴾
«او ستا لپاره ستا رب لارښوونکی او مرستندوی کافي دی.»

څلورویشتم لامل

## په ځمکه کې وګرځئ

له زړه نه د غمونو د ورکېدو یوه لاره دا هم ده، چې یو انسان پر ځمکه سفر وکړي، بېلا بېلو سیمو ته لاړ شي او د کتاب مطالعه وکړي، په دې کې د الله تعالی د قدرت او ځواک نښې نښانې وګوري او له دې لارې د ځان لپاره د خوښۍ لاملونه ولټوي، دلته ډېر په زړه پورې باغونه شته، چې د الله تعالی د توحید وړې پکې خړېدلای شي، دوی پکې ځان خړوبوي او د الله تعالی پر ذات او صفتونو خپل باور ته وده ورکوي او په همدې سره خپلو غمونو او کړاوونو ته د پای ټکی ږدي.

نو زما مسلمانه وروره!

کله نا کله د الله تعالی د توحید په باغونو کې د څرېدو لپاره له خپل کوره وځه، خپل چاپېریال ته فکر وکړه او پخپل زړه کې د توحید د عقیدې د روزنې لپاره کله لوړو او کله ژورو ته لاړ شه، د الله تعالی پر قدرت ولاړو غرونو ته سوچ کوه، د چینو له یخو اوبو څخه خپله برخه اخله، د ډول ډول ګلونو له بویولو څخه خوند اخله او هر کله چې د الله تعالی د قدرت نښې وګورې، بیا به خپل روح او ځان ازاد ووینې، د الله تعالی نعمتونه به دې په یاد شي او له دې سره سره په ژبه او زړه کې د الله تعالی ذکر هم کوې؛ نو په دې سره په یقیني توګه کېدای شي چې ستا ټول غمونه ورک شي او زړه دې له خوښیو ډک شي.

په یوه تنګه کوټه کې کېناستل او له کارونو ځان وزګارول، د ځان وژنې لپاره لاره هوارول دي، ستا کوټه ټوله نړۍ نه ده او نه ته په خپل ځان کې ټول ولس یې؛ نو ولې خپل ځان د بلا په خوله کې اچوې؟ د غمونو او کړاوونو لاره ځان ته هواروې.

نه! نه!

داسې نه ده پکار، بلکې دې اواز ته د زړه له کومې ځواب ورکړه:

﴿انفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا﴾

راځه چې چېرته په تازه هوا، ازاده فضا، د ویالو پر غاړو، د ښکلو باغونو او د مرغانو د زړه راښکونکیو اوازونو په منځ کې د قرآن کریم تلاوت وکړو، د الله تعالی ذکر وکړو، هلته په ارامه فضا کې لمونځونه وکړو، په یخه هوا او یخو اوبو کې روژه په خوله وګرځو او د نبي علیه السلام د دې وینا مطابق د الله په لاره کې ورک شوی فرض راژوندی کړو چې فرمایي:

سِيَاحَةَ أُمَّتِي الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ

«زما د امت سیاحت د الله تعالی په لاره کې جهاد کول دي.»

په ازاده فضا کې ګرځېدل یو لوی غنیمت او د الله تعالی ستر نعمت دی، ډېرو رواني ناروغانو ته ډاکټران پر همدې کار په پوره ټینګار مشوره ورکوي او الله تعالی هم په ځمکه، اسمانونو او په مخلوقاتو کې پر سوچ او فکر کولو امر کړی دی.

﴿وَيَتَفَكَّرُونَ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هَٰذَا بَاطِلًا سُبْحَانَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ﴾

«او د اسمانونو او ځمکې په پیدایښت کې غور او فکر کوي (هغوی په غیر ارادي توګه غږ کوي چې) "زموږ ربه! دا ټول شیان تا بابیزه او بې مقصده نه دي هست کړي، ته له دې نه پاك يې چې عبث كار وكړې؛ نو ای ربه! موږ ددوزخ له عذابه وژغوره!".»

مسلمانان د اسمانونو او ځمکې په پیدایښت کې فکر کوي او بیا وایي چې ای الله! دا هر څه تا بې ګټې نه دي پیدا کړي؛ نو ای ربه موږ د اور له عذاب څخه خوندي کړه.

پنځه ويشتم لامل

## صبر وکړه

پر صبر د ځان ښايسته کول د هوښيارو خلکو خوی دی، هوښيار خلک د سينې په پراخوالي، صبر او غښتلې ارادې د ژوند ټولو سختيو ته ماتې ورکوي، ما او تا که صبر ونه کړو؛ نو له لاسه به مو څه وشي؟ !
ايا زموږ لپاره د ستونزو په ځواب کې له صبر پرته بله د حل لاره شته؟
ايا له دې پرته بله ښه توښه موندلای شو؟
د پخوانۍ زمانې يو لوړ رتبه کس، چې په خپل ژوند کې له زياتو ستونزو سره مخ کېده او دا نړۍ ورته د مصيبتونو د مقابلې يو ميدان جوړ شوی و، هر کله به چې د يوه مشکل له مقابلې څخه وزګار شو بل مصيبت به ورته مخه کړې وه؛ خو ده په ټولو حالاتو کې ځان پر الله ورسپارلی و، هغه د خپل حال په اړه وايي:
«هوښيار خلک د زمانې له پېښو سره داسې مقاومت کوي.»
څه خلک د ابو بکر صديق رضي الله تعالى عنه د ناروغۍ پوښتنې ته ورغلل او ورته يې وويل :
آيا ستا لپاره طبيب راوبلو؟!
ابو بکر صديق رضي الله تعالى عنه ورته ځواب ورکړ:
زه طبيب ليدلی يم.
دوی وويل:
نو څه يې درته وويل:
هغه ځواب ورکړ:
طبيب وويل چې زه د هر څه کوونکی يم.
له نېکو خلکو څخه يو تن ناروغه شو، چا ورته وويل: تا ته څه تکليف دی او د څه شي له امله درد دررسېږي؟
هغه په ځواب کې وويل:

تمــوت النفــوس باوصابهــا
ولــم يــدر عوادهــا مابهــا
ومــا انصفــت مهجــة تشــتكي
اذاهــا الى غــير اجابهــا

«نفسونه پر هغه څه ناروغه دي چې ورته رسېدلي دي؛ خو خلک پرې نه پوهېږي او دا انصاف نه دی، چې ته خپل شکایت هغه چا ته کوې چې قبلولای یې نه شي.

صبر کوه او د صبر توفیق هم الله تعالی ورکوي؛ نو له الله تعالی څخه توفیق غواړه، په الله تعالی باور وکړه او د مصیبت په بدل کې له الله تعالی نه د اجر په هیله اوسه، هر کله چې پر تا مصیبتونه راګڼ شي؛ نو باور وکړه چې د الله تعالی مرسته او له مصیبتونو څخه وتل په صبر پورې تړاو لري او په هره سختۍ پسې اسانتیا وي.

ما د پخوانیو مشرانو تاریخ لوستلی دی، د هغوی صبر د حیرانتیا وړ دی، په دوی به مصیبتونه د باران د څاڅکو په څېر راروان وو؛ خو دوی یې په مقابل کې پوره صبر کړی او په خپل صبر یې ټولو حادثو ته ماتې ورکړې وه.

شپږویشتم لامل

## د ټولې ځمکې غمونه په خپل سر مه اخله!

ځینې خلک داسې وي چې د خوب پر بستره یې په مغزو کې د نړیوالو جګړو خیالونه اوړي را راوړي، هسې یې خپله وینه توده کړې وي او په دغه خیالي جنګ کې ورته ډول ډول اندېښنې او غمونه په غنیمت کې رسېږي، چې د دې په پایله کې د معدې زخم، د وینې لوړ فشار او د شکر په ناروغۍ اخته کېږي، له پېښو سره یو ځای درومي، د نرخونو په لوړېدو غصه کېږي، د باران په وروسته والي او نه کېدو شور او زوږ کوي..... او تل په یوه ناورین اخته وي.

﴿يَحْسَبُونَ كُلَّ صَيْحَةٍ عَلَيْهِمْ﴾

«دوی هر زورور اواز د ځان پر ضد ګڼي.»

دوی د هر مصیبت په اړه فکر کوي، چې دوی پرې اخته دي.

ګرانه وروره! ستا د یوه دردمند ورور په توګه تا ته زما نصیحت دی، چې ټوله ځمکه پر سر مه اخله، پېښې او حوادث پر ځمکه پرېږده او په خپلو خبرو کې ځای مه ورکوه، ځینې خلک لکه د اسفنج پشان زړونه لري، هر څه زغمي او هر ډول درواغو او رښتیاوو ته ځای ورکوي، له هر څه نه ډېر ژر اغېزمن کېږي او زړه یې د تل لپاره له همدې امله د اندېښنو او کړاوونو نه ډک وي دغه ډول زړه نړدې دی، چې ګوګل ونړوي او سړی له منځه یوسي.

حقپاله خلک له دغه ډول پېښو څخه پند اخلي ایمان یې لا پسې زیاتېږي او عقیده یې نوره هم پیاوړې کېږي او بې زړه خلک د وخت په تېرېدو سره له لا زیاتې وېرې سره مخ کېږي، ځانته له ورېځو اوښان جوړوي د داسې زړونو خاوندان هره ورځ خپل ځانونه پر پڅه چاړه وژني. که سپېڅلی ژوند غواړې، باید د پېښو په وړاندې په پوره اتلولۍ سره مبارزه وکړې، ځان تر پېښو هم پیاوړی کړې او همدا ستا لپاره د برې

لار ده.
د هغو کمزورو خلکو پر زړونو افسوس پکار دی، چې د ونې د پاڼې په شېر يې د پېښو او حوادثو بادونه رپوي او د دنيا له ژوند څخه دومره اغېزمن وي چې د اخرت لور ته يې هيڅ پام نه وي، بلکې د دنيا په ژوند کې حرص کوي، چې دا د مشرکانو او کافرانو خوی دی:

﴿وَلَتَجِدَنَّهُمْ أَحْرَصَ النَّاسِ عَلَىٰ حَيَوٰةٍ﴾

«ته به دوی تر نورو هر چا ډېر د دنيا پر ژوند حريصان ووينې.»

مسلمان ته نه ښايي چې له دنيا سره مينه وکړي او د پېښو له امله يې خپل موقف بدل کړي بلکې د ونې د تنې په شېر به پياوړی وي، نه د ونې د پاڼې په شېر.

که مسلمان پر خپل موقف کلک ودرېږي او د نړۍ د پېښو تر اغېز لاندې رانشي؛ نو هره ستونزه يې له مخې لرې کېږي او ټولې لارې ورته هوارېږي:

﴿فَأَنزَلَ السَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ﴾

پر مؤمنانو د پياوړي قدم په پايله کې ډاډينه راولېږل شوه.

اووه ویشتم لامل

## په وړو خبرو پسې مه ګرځه

ډېر خلک وړې وړې خبرې چې له سره د یادولو وړ نه وي، زړه ته نیسي او په دې سره ډېر دروند غم پر خپلو اوږو باروي.

وتعظـم في عين الصغـير صغارها

وتصغـر في عين العظيـم العظائم

«د وړو خلکو په سترګو کې وړې خبرې ډېرې سترې وي؛ خو د لویو خلکو په سترګو کې بیا ډېرې لویې خبرې وړې ښکاري.»

تاسې منافقانو ته وګورئ، څومره ټيټ همتونه او لوېدلی هوډ لري، هیڅ حوصله نه لري او نه د یوه شي په اړه مقاومت کولای شي، د جهاد په اړه د دوی وینا دا وي ﴿لَا تَنْفِرُوا فِي الْحَرِّ﴾ «په ګرمۍ کې جهاد ته مه وځئ» ﴿ائْذَنْ لِي وَلَا تَفْتِنِّي﴾ «ما ته اجازه وکړه او په فتنه کې مې مه اچوه» ﴿بُيُوتَنَا عَوْرَةٌ﴾ «کورونه مو خالي دي» ﴿نَخْشَىٰ أَنْ تُصِيبَنَا دَائِرَةٌ﴾ «موږ وېرېږو چې له کومې پېښې سره مخ نشو» ﴿مَا وَعَدَنَا اللَّهُ وَرَسُولُهُ إِلَّا غُرُورًا﴾ «موږ سره الله او رسول د دوکې ژمنه کړې ده»، په داسې نفسونو او داسې خیالاتو افسوس پکار دی.

د دوی ټول فکر د خېټې په اړه وي او په هر څه کې غواړي چې ځانونه ماړه کړي، لوی لوی قصرونه او ماڼۍ جوړې کړي او د ځان لپاره د ځانپالنې اسباب ولټوي، تل یې دنیوي ګټو ته سترګې وي، ټول غم یې له خپلو جامو، سورلۍ، بوټ، څپلۍ او دسترخوان سره وي.

که تاسې د ځینو کمزورو خلکو حالت ته وګورئ، سبا بېګا به یې له خپلې ښځې، اولاد، ورونو او ګاونډیانو سره له جګړو پرته بل کار نه وي او دا په ډېرو وړو وړو خبرو کله په دې چې په ترکارۍ کې مالګه ډېره

شوې؛ نو اوس د ده ژوند په دې کور کې د تېرېدو وړ نه دی او کله یو لوښی د یوه ماشوم له لاسه مات شوی دی؛ نو اوس دا ماشوم په کور کې د پرېښودلو وړ نه دی او کله یې له ګاونډي څخه یواځې د خولې خبره اورېدلې یا په دروغو چا وررسولې؛ نو اوس د ده لپاره دغه خبره زغمل د سړیتوب خلاف دي، کله یې په ګاونډ کې په چرګانو جنجال دی او کله یې په سپیو، کله د کارونې په لوښو او سامانونو او..... ټول خلک هم ترې په کړاو اخته دي او د دې بدمرغه خپلې شپې او ورځې هم نا ارامه دي.

داسې خلک لوړ هوډ نه لري او نه په خپل ژوند کې سترې موخې لري، چې پرې بوخت شي همدې خبرو ته وزګار وي او همدې خبرو ته یې مخه وي، له دوی سره له دې پرته د پام وړ کار نشته، چې خپل وخت پرې ډک کړي، هوښیاران وایي چې لوښی هر کله له اوبو خالي شي له هوا ډکېږي، دوی چې په خپل ژوند کې ارزښتناک کارونه او چارې نه لري، خود به په داسې وړو وړو خبرو خپل ژوند تېروي او هرو مرو به یې ژوند تنګ او له غمونو ډک وي، اوس ته خپل کارونه په پام کې ونیسه، چې ته په کومو کارونو غمجن کېږې، ایا دغه کارونه د غم او خفکان وړ دي؟ ایا ستا ارزښتناک وخت په داسې کارونو او خبرو بربادول ښه کار دی؟ ایا دا مناسب ده چې د الله تعالی بهترین نعمت (روغتیا او دماغ) دې په دې وړو خبرو له لاسه ورکړې؟.

الله تعالی تا ته ډېر ستر ستر نعمتونه درکړي دي، چې ته یې باید په داسې خبرو ورنکړې او که دا کار وکړې؛ نو دا ستا لپاره ډېر ستر تاوان دی او په ناچله (بندو) پیسو سودا کول دي، نفس پوهان وایي: هر شی تر خپل معقول بریده پورې ترسره کول پکار دي او د هر شي لپاره خپله اندازه وي، الله تعالی ښه ویلي دي ﴿قَدْ جَعَلَ اللَّهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا﴾ الله تعالی د هر یوه شي لپاره خپله اندازه ټاکلې ده؛ نو هرې پېښې ته خپله اندازه وزن ورکړه او په ټولو چارو کې له غلو کمي زیاتي څخه ډډه وکړه.

د صحابه کرامو رضي الله عنهم هوډ ته فکر وکړه، چې د یوې ونې بېخ ته ناست دي او له نبي صلی الله علیه وسلم سره د وفا ژمنه (بیعت) کوي، په همدې سره دوی د الله تعالی رضا ته ورسېدل، هغوی دغه بیعت د نبي علیه السلام ملګرتیا او د الله تعالی دین ته کور کلی او د دنیوي ژوند هر څه پرېښودلو لپاره کړی و؛ نو ته ولې په وړو وړو خبرو پسې ګرځې او غټ غټ کارونه پرې پرېږدې؟ په وړو وړو خبرو خپل ژوند تباه کوې، دا کار مه کوه په وړو وړو خبرو پسې مه ګرځه، دا پرېږده، خپل هوډ ستر کړه، په ارزښتناکو کارونو ځان بوخت کړه او بیا وګوره چې غمونه دې درنه په کوم لور مخه کوي او له څومره خوښیو سره مخ کېږې، یو ځل یې تجربه وکړه.

اته ویشتم لامل

## د الله پر وېش خوښ اوسه

په پورتنیو لاملونو کې د دې لامل ځینې معناوې تېرې شوې؛ خو زه غواړم چې لږ یې وغځوم د دې لپاره چې ښه پرې پوه شو او هغه دا چې ته پر هغه وېش خوښ شې، چې الله رب العلمین درکړي دي او تا ته یې چې په مال، اولاد، ښځې، کور او ټولو نعمتونو کې کومه برخه درکړې، هغه د ځان لپاره پوره وګڼې او همدا د قرآن کریم وینا هم ده ﴿فَخُذۡ مَآ ءَاتَیۡتُكَ وَكُن مِّنَ ٱلشَّٰكِرِینَ﴾ «څه مو چې درکړي وایې خله او پر هغې له شکر ویستونکیو څخه شه.»

له سلفو څخه ډېر بې وزله او د مال له پلوه کمزورې وو، ښې ماڼۍ، ښې سورلۍ او ډېر مال یې نه درلود؛ خو سره له دې د هغوی ژوند له خوښیو ډک و او نه یواځې خپله نېکمرغه وو، بلکې نورو ولسونو ته یې د نېکمرغۍ لارې چارې ورښودلې، دا ځکه چې دوی د الله تعالی په لور مخه کړې وه او هغه څه یې په کار اچولي وو، چې الله تعالی دوی ته ورکړي وو، په سمه لار کې یې لګول، همدا لامل و چې الله تعالی ورته په لږو کې ډېر برکتونه ایښي وو او دومره کار ترې شوی و، چې ډېرو شتمنو او د زیات مال او اولاد څاوندانو څخه نه وي شوی، بلکې د دوی لپاره خو خپل مال او اولاد د هلاکت لامل ګرځېدلی و، ځکه دوی پرې له سالم او روغ فطرت څخه اوړېدلي وو؛ نو د هغوی مقام ته رسېدل ډېره لرې خبره ده.

ته هغو خلکو ته وګوره چې په زده کړه کې د نړیوالو پوهنتونو څخه تصدیقونه په لاس لري، په دوی کې ډېر به داسې وي چې هیڅ کار به ترې نه کېږي او ډېر خلک داسې شته چې عادي زده کړې به یې کړې وي او الله تعالی به ترې ډېر لوی کار اخلي، خلکو ته به ترې ګټه رسېږي،

د ولسونو اصلاح به وکړي او د هېواد په ودانۍ کې به ستره ونډه لري.
که ته غواړې چې نېکمرغه (خوښ) ژوند وکړې؛ نو پخپله برخه راضي شه، خپل شکل او صورت ښایسته وګڼه، کورنی ژوند دې چې هر ډول وي د الله تعالی ستر نعمت وبوله، خپل اواز د الله تعالی د قدرت یوه نښه وګڼه، د خپلې پوهې مستوی دې لوړه او د لازیاتې پوهې لپاره هڅه کوه او له الله تعالی نه یې غواړه ﴿وَقُل رَّبِّ زِدْنِي عِلْمًا﴾ د تل لپاره وایه، چې ای الله زما پوهه زیاته کړه، ځینې پوهان لا تر دې هم وړاندې تللي دي او وایي چې تر دې هم په کمه راضي شه.
دلته د هغو کسانو د نومونو یو لوی لړ لیک شته چې په دنیوي ژوند کې یې ډېر نعمتونه له لاسه ورکړي دي.
عطاء بن ابي رباح رحمه الله په خپله زمانه کې د نړۍ ستر عالم و؛ خو سره له دې دا د اسود افطس ازاد شوی غلام و.
احنف بن قیس د عربو مشهور صبرناک شخصیت و، سره له دې چې له بدن نه ډېر خوار، د نرۍ ملا او کمزورو پونډیو خاوند و.
اعمش د نړۍ ستر محدث سره له دې چې نوموړی له ازادو شویو غلامانو څخه و ډېر غریب، د څیرې جامو او ګډ وډ شکل خاوند و.
دا ټول پر ځای پرېږده ټول انبیاء د مال له پلوه کمزوري وو، ځینې یې د ګډو بزو څروونکي، څوک یې اهنګر او ځینې یې ترکاڼان وو، سره له دې چې دوی د نړۍ په تاریخ کې تر ټولو غوره مخلوق تېر شوي دي.
له دې امله که ته پخپلو شتو فکر وکړې؛ نو ټول د شکر وړ دي؛ نو په پردي ډول ډال، مال او شتو پسې مه خوېږه هماغه د ځان لپاره پوره وګڼه او شکر پرې ادا کړه، ته به له بدمرغۍ خوندي او نېکمرغي به دې په برخه وي ﴿نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُم مَّعِيشَتَهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا﴾ دنیوي ژوند موږ د دوی ترمنځ وېشلی دی.

نهه وېشتم لامل

## جنت او د هغه پراخي را په زړه کړه

په ژوند کې انسان له هر ډول حالاتو سره مخ کېږي، کله تنګسه او کله خوشحالي وي؛ نو که څو ورځې غمجن شوې، یا دې چا حق تر پښو لاندې کړ؛ نو ته د دغو ستونزو په بدل کې د جنت نعمتونه را په زړه کړه، که داسې دې وکړل؛ نو ټولې اندېښنې به دې ختمې شي او له ډېر لوی تاوان نه به خلاص شې.

هوښیار هغه څوک دي چې د اخرت لپاره کار کوي، ځکه چې هغه همېشنی کور دی، تر ټولو ناپوهه هغه څوک دی، چې په دې فاني نړۍ پسې نښتی وي او همداسې خلک د مصیبت پر مهال ډېر اندېښمن او په خپلو کړو پښېمان ښکاري، ځکه دوی سپکه او بې ارزښته نړۍ په پام کې نیولې، په داسې حال کې چې په دې نړۍ کې ډېر نه پاتې کېږي. هیڅ ستونزه موږ ته خوښه نه ده او باید نه وي؛ خو باید صبر پرې وکړو. که دوی د جهالت او وحشت دغه توره او چټله پرده له سترګو پورته کړي؛ نو حقایق به ورته په ډاګه شي او په ابدي کور (جنت) کې به خپلې ماڼۍ، حورې او غلمان په ثابت شوي توګه وګوري، ایا موږ په دې اړه فکر کړی چې په جنت کې استوګن خلک نه مرګ لري، نه اندېښنه، نه لوږې او نه ژورې لري، نه زړښت لري او نه فنا، په داسې کوټو کې به استوګنه کوي، چې ظاهر به یې له باطن څخه ښکاري او باطن به یې له ظاهر څخه.

هلته داسې څه شته، چې نه سترګو لیدلي، نه د هغې په اړه غوږونو څه اورېدلي او نه د کوم انسان په واک کې راغلي، پر اس سپور کس به یې د ونې تر سیوري لاندې سل کاله مزل کوي؛ خو بیا به یې هم لنډولی نه شي یوه خیمه یې شپېته میله اوږدوالی لري، ویالې یې پر اوبو، شېدو، شاتو او شرابو تر و تازه او ډکې بهېږي، ماڼۍ یې ښکلې او تختونه یې

اوچت دي.

لنډه دا چې د ارمانونو او د هیلو د پوره کېدو ځای جنت دی او په جنت کې هر څه شته:

«کله چې لاره د د غه ستر او نه فنا کېدونکي کور پر لور وي؛ نو د دې نړۍ غمونه بیا انسان ته واړه او سپک ښکاري.»

نېکي چارې ترسره کړه چې د الله جل جلاله جنت ته ورشې او د هغه په ګاونډ کې استوګن شې.

﴿سَلَٰمٌ عَلَيۡكُم بِمَا صَبَرۡتُمۡۚ فَنِعۡمَ عُقۡبَى ٱلدَّارِ﴾

«او هغوی (جنتیانو ته به په جنت کې) ووېل شي: چې پر تاسې سلامتیا ده، څنګه چې تاسو په دنیا کې له صبر څخه کار واخیست، د هغه په برکت نن تاسې د دې ور ګرځېدلي یاست؛ نو څه ښه دی دغه د اخرت کور.»

دېرشم لامل

## په هر کار کې منځلاري اوسه!

منځلاري (اعتدال) يو شرعي او عقلي مقصد دی او که څوک نېکمرغه ژوند غواړي؛ نو خپلې هیلې دې په واک کې ولري او په هر کار کې دې له منځلارۍ څخه کار واخلي، که د غصې په حال کې يو کار ترسره کوي او که د نرمۍ، همدا شان په هر څه کې له کمي او زياتي نه ځان ساتل پکار دي، ځکه عدل دومره ضروري شی دی، چې دين هم له ميزان (تلې) سره رالېږل شوی دی او دنيوي ژوند هم پر عدل ولاړ دی.

هغه څوک به د تل لپاره ستړی، ستومانه او له هر چا نه ډېر بدمرغه وي، چې تل د خپلو هيلو پلوي وي، د زړه له غوښتنې سره سم ځغلي او څه چې غواړي دی يې ترسره کوي، ځکه داسې کس د تل لپاره د پېښو او حوادثو په دام کې نښلي او د ژوند په ټولو خواوو کې له تيارو سره مخ کېږي او په زړه کې يې د کينې او حسد اور بل وي، ځکه داسې انسان د تل لپاره په خيالاتو او وهمونو کې شپې سبا کوي، تر دې چې دی داسې فکر کوي، چې ګوندې ټول خلک د ده پر ضد دي، سره له دې چې نور خلک به د ده لپاره ښه خوا خوږي وي، له دې امله تل په وسوسو اخته وي او فکر کوي چې ګوندې ټوله نړۍ ده ته په کمين کې ده او له همدې امله د غم، درد او کړاو په تورو تيارو کې ژوند کوي.

د چا زړه ته وېره وراچول او د وېرې خبرونه خپرول په شريعت کې ناوړه کار بلل شوی دی؛ خو انساني طبيعت ته دا کار ډېر اسان دی، دا چارې هماغه خلک ترسره کوي، چې له دين او ژونديو ارزښتونو بې برخې وي.

﴿يَحۡسَبُونَ كُلَّ صَيۡحَةٍ عَلَيۡهِمۡ﴾

«دوی هر زورور اواز د ځان پر ضد بولي.»

په دې اړه تا ته زما سپارښتنه دا ده، چې ښه ډاډمن ژوند کوه، هسې اټکلي پېښې ځان ته مه انځوروه، ځان ته له وريځو اوښان مه جوړوه

او خپل ځان په زوره مه وېروه، ځکه وېره اکثره له هغه څه نه ورکول کېږي چې هيڅ شتون نه لري او يا يې رامنځته کېدل هيڅ شوني نه وي، د ځان ډاډمن کولو لپاره يوه طريقه دا ده چې له کوم مصيبت څخه وېرېږې وار له مخه يې پر ځان فرض کړه، پخپل ذهن کې ورته ځای ورکړه په دې سره به ته له وسوسو او وهمونو خوندي پاتې شې او هره لويه ستونزه به درته ډېره کوچنۍ برېښي.

ای زما هوښياره وروره!

د مچ له وزر نه ځانته غرونه مه جوړوه، بلکې له منځلارۍ څخه کار واخله، د محبت او کرکې په اړه په حديث کې راغلي دي، چې په دوستۍ کې ډېر مه خوږېږه کېدای شي دغه کس دې سبا ته دښمن شي او په دښمنۍ کې هم ډېر مه تريخېږه، ښايي همدغه کس يوه ورځ ستا دوست شي؛ بيا به دې ورته سترگې خړې وي، له دې امله په هر کار کې منځلاري پکار ده.

﴿عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّجْعَلَ بَيْنَكُمْ وَ بَيْنَ الَّذِيْنَ عَادَيْتُمْ مِّنْهُمْ مَّوَدَّةً ؕ وَ اللّٰهُ قَدِيْرٌ ؕ وَ اللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ﴾

«کېدای شي چې الله تعالی ستاسې او د هغو خلکو ترمنځ مينه پيدا کړي، چې ستاسې ورسره دښمني ده او الله تعالی ځواکمن دی او الله تعالی ښښونکی او مهربان دی.»

# پای

پورتنۍ لیکنه به تر هغې د کاغذ پر مخ یوه لیکنه وي او ته به ترې هیڅ ګټه وانخلې چې په ځان، کورنۍ، دنده او ټول ژوند کې دې پلې کړې نه وي او که دا کار دې وکړ؛ نو تا ته به په زړه پورې ښایسته او خوږ ژوند در په برخه شي، چې همدا خوښ ژوند به دې په تلپاتې ژوند (اخرت) کې هم خوښۍ او هوساینې ته راکاږي:

﴿رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّ فِي الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّ قِنَا عَذَابَ النَّارِ﴾

«ای ربه! ته موږ ته په دنیا کې هم سپېڅلی او په زړه پورې ژوند راوبښه او په اخرت کې هم او موږ د دوزخ له اور نه وساتې.»

امین یا رب العلمین.

سبحان ربک رب العزة عما یصفون وسلام علی المرسلین والحمد لله رب العلمین.

۱۳۹۱/۲/۲۹

۱۴۳۳/۶/۲۶

د جمعې مبارکه ورځ

